## كتاب پېژندنه:

| | |
|---|---|
| نوم | : د باد په کنډوالو کې |
| ويناوال | : کاوون توفاني |
| مهتمم | : عبدالهادي هادي |
| چاپ شمېر | : ۵۰۰ ټوکه |
| چاپ نېټه | : ۱۳۸۱ لمريز/ ۲۰۰۲ م |
| کمپوزر | : ذشفق |
| د پښتۍ خطاط | : استاد د قمرالدين چشتي |

چاپ او کمپيوټر ځاي

دانش کتابتون، قصه خوانی بازار، پيښور

د انټير نيټ په مخ ترتيب او ډيزاين کوونکې : سمسور حبيبي

دسریزي په ځای.

# دمینی په نامه

دزړه په شاړه کرونده کې مې دهیلو سپرغۍ وکرلې ،

اودآرمان دښاپیرۍ په څنګ وځنګیدم.

بیا مې دتیږو په ساړه ذهن کې ،

دتودې مینې په نوم ،

دزړه په وینو دیوې بلې کړلې.

دشپې په دښته کې مې ،

په سپیروشګو ، دګلونو دپښو خاپونه ولټول.

اودبادونو په شګلن بهیر کې ،

دسرو غټیو دمزار خیلې ته ودریدم

اودخدای ټول کلی مې ،

چې شپه او ورځ پکې داوښکو بارانونه کیدل

په یوې اوښکې ،

په یوې ورستنۍ اوشکې ،

پسې ولټاوه.

چې دغمونو دځپر کي وروستۍ پاڼې ته وروستی ټکی شي

خوته به وایې چې وروستۍ اوښکه ،

مرغۍ شوه ،

او هوا ته ،

لاړه.

* * *

کله چې باغ کې ، تبر شین شو دنارنجو په خای ،

ماته دشنو ونو دمړینې افسانه یاده شوه ،

او زړه مې وټوکیده ،

لوی شو ،

بیرته ورژیده.

ټوټې ، ټوټوې شو ،

پاڼې پاڼې شو ،

دباغ په ونو وغوړیده.

دکوم بې نومه ، نا څرګندده «چا» خبرومې په غوږ کې انګا زې کولې

کله چې ونې مري ، شمال لګیږي ،

کله چې ونې مري ، نرۍ نرۍ باران وریږي ،

کله چې ونې مري ،آسمان په چیغو چیغو ژاړي،

سیندونه ساه ورکوي،

او چپه کېږي غرونه،

او بيا له کومهنا څرګنده ځايه،

يو لاس راوزي، چي رڼا حپروي،

يو لاس راوزي، چي بادونه تړي،

يو لاس راوزي، چي له ډاره يې، د تبر خوله کي ژبه سوزي "

خو ما کتل چې ونې مړې شوې،

ګلان ورژېدل

په شنو باغونو کې د تبر ترانه جاري شوه،

په وچو څانګو د مرغيو ځالې ونړېدې،

او خو نړۍ سيلۍ په ټولو کلی کې وچلېده.

شمال ونه لګېده،

نری نری باران ونه وريده،

غرونه ونه نړېدل،

سيندونه ساه ورنه کړه،

او د اسمان له تکو شنو سترګو نه، يو څاڅکی ونه څڅېده

له ناڅرګنده ځايه،

د باغ په لوري لاس ونه غزيده،

د خدای په ټول کلي کې،

چا د زخمي ننښترو سوې ساندې وانه وريدې،

چا د سپېلیو وزر ونه تاړه،

چا د تبر ژبه غوڅه نه کړه.

خو د بې نومه نا څرګنده "چا" خبرې مې تر اوسه لا په ذهن کې دي.

* * *

اوس لکه ستړي سرګردانه مرغه،

د باد په ورانو کنډوالو الوزم،

د باد په ورانو کنډوالو کې، مې د هيلو،

سره ګلان،

لټوم

آلمان / اپریل ۲۰۰۰

# دمینې شرط

ماته یادشي چې ته پیغله، زه زلمی وم

په رګوکې مو سکروټې ګرځیدلې

ټول وجود مو اور دمینې و، نیولی

له لیمو نه مو سپرغۍ پورته کیدلې

پسرلی و                                                                ،

دنیا ټوله ښایسته وه ،

دوړمې کاروان ،

شیندلي وو،

عطرونه.

دځوانۍ په میو مست وو موږه دواړه

له غمونو موخالي وو، زلمي زړونه.

زه په مینه درنژدې شوم چې دې ښکل کړم،

دهوس په دنیا سم کړم قیا متونه.

تا مې لاس په شونډو کیښود ،

بیا دې وویل :

چې اول مې تور پیکي ته ،

سورګل ،

راوړه،

بیامې ښکل کړه د سورکو شونډو سرونه .

او سورګل ،

زموږ د ځوانې مینې ، شرط شو .

زه له هغې ورځې وروسته بیا تر اوسه ،

سرګردانه په سرو ګلو پسې ګرځم.

کله سمې لټومه ،

کله ،

غرونه ،

کله دښتې او میرې،

کله،

باغونه.

له هر چا نه د سرو ګلو پته غواړم ،

په سرو ګلو پسې لویې لارې نغاړم.

نه مې ستا د پیکې ګل ،

چیرې ،

پیدا که ،

نه پوره مو د نیمګړې مینې ،

شرط ،

شو

نه مې ښکل کړل ،

ستا د سرو شونډو ،

سرونه

نه سمسور شول ،

نښتيځلي ،

ارمانونه .

آلمان /۱۹/۸/۱۳

# د کوترې خوب

کوترې خوب لیدلی
چې اور نفسه سارایي بادونه ،
بیرته ستنیږي د سارا غېږې ته.
کوترې خوب لیدلی
چې دلیندیو فصل ،
پرون ړلی وواهه
او نن ، د کلي بزګر
خپلو پټیو کې ، غنم و

* * *

کوترې خوب لیدلی
چې د چنار لوڅه ، لغړه ونه ،
بیل په تنکیو پاڼو پټه ښکاري.

* * *

کوتره ناسته ده د کلي دویالې له پاسه
د توت دونې په بر بنډه څانګه ،
او په اوبو کې دلیدلي خوب تعبیر لټوي.

کابل ۱۳۶۶/۱۲/۲۵

# دږلی هینداره

میـــکدي تــه یې مخشر په اوږو راووړ
چي زاهــد د تـــوبـــو غر په اوږو راووړ

څه تـــا ثـیــر دی د ډیوې په سره لمبه کې
چـــې پتنګ ورته خپل سر په اوږو راووړ

داشنـــا په غم مې کسي دواړه سپین شول
سیـــل د اوښکـــو مې نظر په اوږو راووړ

دزړه شمـه بــه یــې بـله کړمه لار کي
کـه د شپـــي مـــړی سحر په اوږو راووړ

یـــوه څـاڅــکي سـمنـدر په اوږو راووړ
دا فق لمنه ســره پـــه وینـــو ښـــکاري

تـــورو وریځو زخمي لمر په اوږو راووړ
د لته جوړه قـــتـلګا ه ده د غـو تـــیـــو

سره غاټو ل ورته خپل سر په اوږو راووړ

۱۳۷۱/غبرګولی کابل

د باد په کنډوالوکې

کاوون توفاني

# توره سیلۍ

بادو نه دي، غوغـــا کوي بـــاغـــونه، رژوي

شنې ونې لو ټوي، رنګیـن ګلـــونـــه،رژوي

وربمـې پـــرون راوړی و پـــیـغام د غـــوړیدو

نن تـــوره سېلۍ راغله، بـــهـــارونـه رژوي

یو بـــاددی را الوتی لـــه ســـرا بـــه دوعـدو

په شـونډو د جانان مې ځـــوابـــونـــه، رژوې

د حسن له جلوي نـه یـې زاهـــد نـــه دی خبر

ســـجـــدې پـــیـــکه کوي او ایمانونـــه رژوي

راوو ت لـــه مـــســـجـــده، شو دېره په خرابات

دخـــم پـــه پښـــو کې غـــړي،ثوابو نه رژوي

نـه ویـــره لـــه سکـــروټو او نـــه تنده د کو ثر

ملا دتـــخت له پـــاســـــه خمـــارونـــه رژوي

ښکر یږي چې تش یاد یې هم،په ما نه دی پېرزو

رقیب مې دجانان کو څه کـې پـــلـــو نه رژوي

دستر ګو په أسمان کې یې بیا ستوري شول رابر

شوګیر یې را ته ښکا ري چـــې خـــوبونه رژوي

کابل ۲۰/۲/۱۳۷۱

# خدای پامان

درنه لاړم خدای پامان ،زخمي کابله

زما روحـــه، زما ځان، زخمي کابله

درنه لاړم خــو له زړه مې وينی څاڅي

تانه جار، تانـــه قربان، زخمي کابله

د کابل هوا يې ډکر

د غبر ګولې ۱۳۷۱

د باد په کندوالوکې

کاوون توفاني

# درنه ځمه

درنــه ځــمه، مــجبوري ده، درنه ځمه

په قسمت کې مې خواري ده درنه ځمه

ګوره مــاتــه پــه غــصه نه شي وطنه

راتــه پــیــښــه نــاچــاري ده درنه ځمه

هوايي ډګر کابل

د غبر ګولې ۱۳۷۱

# غلي نغمې

پــه بڼو ستوري زنګــوم داشنا کلي ته ځم

سترګې په لاره غـوړم ، دآشـنــا کلي تــه ځم

کلی خاموشه ، ګودر شړ ، کوڅې له دوده ډکې

رقيــبه ، کډې بــاروم ، دآشـنــا کلي ته ځم

پـــه شــپو لـړلي سرګردانه مسافر وختونه

ورو ، ورو له سره تيروم ، دآشـــنــا کلي ته ځم

ريښې ريښې ګريوان مې لاړو درقيـب ګوتوکې

دننګ ځولۍ پيوندوم ، دآشنا کلـــي تــه ځم

بلبل له غـــږه بيګانه ، ګل لــه بلــبــلــه پردی

غـــلـې نـغمــې مـــې ژړوم دآشنا کلي ته ځم.

فبروري/۱۹۹۴ آلمان

# دبادونو شپه

دباران شپه ده ، دبادونو شپـــه ده
دزړه په کور مې دغمونو شپـــه ده
شماله ورو ، ورو يې په ناز خوځوه
ديار په زلفو دګلـــونو شـپــه ده
دايې خندا په اننګـــو کــې ويــده
که په ککو يې دنـا زونـو شپـــه ده
وچ او لا نده پکې په ګډه سوځـــي
زموږ په کلي داورونـو شپـــه ده
دلمر پـــه ځښوکې خځلې زانـــګي
پـــه شنه جـــنت د دوزخونو شپه ده
نـه شنه خنــدا نه تبســـم دګلـــو
په باغ پـــريوتې دخوبـونو شپه ده
ونـــې له ويـــــرې تنفس نه کوي
شپـــه ده ، دتورو توفانونو شپه ده
ټوله دنـــيا درنا ســـين کې لامبي
زموږ په بـــرخه ، دعمرونو شپه ده
ډيوې خاموشې ، ميکدې ويجاړې

آلمان ـ ۶/ ۸/۱۹۹۳

# لولۍ دنيا

بيا يې خـــوارېه خـــوارېه يادونه په ما لوبې کوي

بـــيـا يــې خـــنــدا ده چې زما په ژړا لو بې کوي

بـــيـا مـــې ريـــښې ريـــښې لمنه له اغزو ډکه ده

بـــيـا دخـــزان سيـــلۍ دګل پـــه خندا لو بې کوي

بيا مې ځليږي دبڼـو پـــه ســـر لـــړزانـده ستوري

بيا مې دتو رې شپـــې قسمت ، په ړڼا لوبې کوي

مـــغـــل کاتـــه يـــې هيروي رانه انګريـــز وختونه

خوشحال غيرت مې دشملې په ړڼا لوبـــې کـــوي

خمونه تش ، ساقي خمار ، زه دعمرونـــو تـــږی

بدل مهال دی صراحي په صهبا لـــو بـــې کوي

کلــــه دمـــا ، کلـــه دتـــا ، کلـه دبل غـــيرېه کې

لولۍ دنيا ده ، هم په ما هـــم په تا لوبـــې کوي

دزړه تو تې تو تې ښيښه مې داشنـــا په لاس کې

لکه ماشوم يې دشـــغـلو په ځــــــلا لــــوبــــې کـــــوي

هغه چې وژني مــې په مـــړي مـــې هـــم هــغـه ژاړي
شـــهـــيده ســـاه مـــې د قــــاتـــل پـــه ژړا لـوبـې کوي
ګلبو يه زلـفـې يـــې خـــورې ورې د بـــاد پـــه اوږو
لکه قصې د مينتوب چـې پـه چا لـــوبـــې کـــوي
نـــه مـــې ما ضـــي په شـــغلو پټ نه مستقبل په ستورو
پرون ايرې ، نـــن مـــې لـــوګـــی په صبا لوبې کوي

آلمان ۶ /مارچ / ۱۹۹۴

# دوینو پسرلی

پسرلی په وطن راغی
خو نه ګل او نه بورا شته
نه په باغ کې غوټۍ خاندي
نه ګلونه په صحرا شته .

* * *

نه د غرو لمنې شنې شوې
نه شپونکی نه یې شپیلۍ شته
نه د میږو قطارونه
نه کوچی نه یې کیږدۍ شته

* * *

نه دمشکو کاروان راغی
نه د عطرو وزر خپور شو
نه بیدیا په ګلو پټه ،
نه سپیره چمن سمسور شو .

* * *

نه په غرونو غوړیدلي
شنې قالینې د شنیلیو
نه له ونو پورته کیږي
آوازونه د مرغیو

* * *

نه د شنو ویالو په غاړه ،
ټوکیدلي سره ګلونه
نه په دښتو کې بلیږي
د غاټولو څراغونه

* * *

نـــه هیـــلۍ پـــه هـــوا راغلې
نـــه د زانـــو زنـــځیـــرونـــه
نـــه آواز د تـــوتـــکـــیـــو
نـــه د ســـاچـو پـــروازونـــه .
* * *

نـــه د نـــیـــمـو شـــپـو سنـــدرې
نـــه هـــی هـــی د کاروانـــونـــو
نـــه شوګیر د عـــاشـــقـــانـــو
نـــه تـــودو خـــــه د عشقونو .
* * *

نـــه بـــریښنـــا د سپینـــو لیچو
نه د شنو بنګړیـــو شـــور شـــتـــه
نـــه ځـــلا د بـــارخـــوګانـــو
نـــه د ســرو مـــــچکو اور شته .
* * *

پسرلی پـــه وطـــن راغـــــی ،
خـــو نـــه ګل او نـــه بـلبل شته
نـــه د پـــیـــغلو خنـــداګانـــې
نـــه ګـــلونـــه په اوربل شته .
* * *

نـــه دریـــاب دریاب صهبا شته
نـــه څـــپې څـــــپې مستي شته
نـــه جـــنـــون د تـــودو غـــیرو
نـــه د مـــینـــې لیـــوني شـــته .
* * *

نـــه خـــوشـــحـــال تـــوره تړلې
د افـــغـــان د نـــنـــګ لـــه پـــاره
نـــه ولـــس لښـــکرې ایستي

د مغل اورنګ له پاره .

* * *

د زردشت اورونه مړه دي
د سوما پياله نسکوره
د بابا پګړۍ ده جړه ،
ابۍ ناسته ده سر توره .

* * *

د کابل له سوي زړه نه
شنه دودونه پورته کيږي
له زاړه بالاحصاره ،
فريادونه پورته کيږي .

* * *

د بخدي په کنډوالو کې
د کارغانو شورماشور دی
د هري په ديوالونو ،
د ګونګانو وزر خپور دی .

* * *

د رستم د تخت له پاسه
ګيدړ نقل د زمري کا
د ګربت په آشيانه کې
ټپوس ناست دی سروري کا .

* * *

د هلمند په ورشوګانو
د اغزيو باران ووري
د زاړه بست په مانيو
د سرو وينو ګلان ووري .

* * *

لــه ګلــــزاره نـــنــګــرهـــــاره
دګلـــــونـــــو ځـلا تـلـــلـــې
دروښـــــان پـــه کـــالـــه ویر دی
د خـــوښــیـــو لــیـلا تــلـــلــې .
* * *

دنـــارنـجــو ستــونـــي غوخ دي
دښوون ښـاخــونــه پــرې دي
دبـــلــبــل ژبــه ګــونګـــی ده ،
دبـــورا وزرونـــه پـــــرې دي
* * *

الـــیـــنګار په اور کـــې سوزي
الیشــــنـګ پـــه اور کې سوزي
دود جګیـــرې لـــه پـــامیـــره ،
لوی ســالنګ په اور کې سوزي .
* * *

د پـــــردي بــهـــار ورمــــې دي
راچلــیــرې پـــه وطــن مـــې
دغـــلیـــم دفــــکـــــر دوړې
راخوریــرې پـــه وطـــن مـــې .
* * *

پـــه عـــزت پـوري مـو خاندي
سپــــکاوی مـــو د شــملو کا
سپینوي مـــو ، تـــوروي مـــو
مسخرې مـــو پـــه پـښتـو کا .
* * *

دې بهـــار بهـــار وطـــن کـــې
اوس خـــزان خـــزان میـشته دی
په دې ګل ، ګلبڼ هیـــوادکـــې ،

داغـزو کاروان مـــیشتـــه‌دی .

*     *     *

دې خـــنـدا خـندا هیواد کـــې
اوس ژړا ، ژړا ، ژړا ده
دژوندون نــغمــه خامــوشـــه
دمـــــرګـــونـــو واویـــلا ده .

*     *     *

هـــره شـپـه لــه شنــه آسمانه
ستـــوري لـویـــږي ،رانـړیږي
درنـــــا دبــام لــه پــاســه
دتـــیــارو ډمـــې نـخیـــږي .

*     *     *

شـــبنـــم ســـور دی ، ږلۍ سره ده
چمن ســـور دی ، بیدیا ســـــره ده
شونډې سرې ، خبرې ســـرې دي
خنـــدا ســــره ده ،ژړا ســـره ده.

*     *     *

بـــیـــا د ویـــنـــو پـــســـرلی دی
بـــیـــا دویـــنـــو بـــارانـــونـــه
بـــیـــا دویـــنـــو غوټۍ خاندي
.بـــیـــا د وینـــو ســـره ګلـــونه

آلمان

اپریل ۱۹۹۴

# درنها په بنهو

دمجنون دزړه تــنهــا که ، دليلا په بـــنهـــو زانـــګم
ثاثکی اوښکه دحسرت يم ، دآشنا په بنهو زانـــګم
دپـــرون سپـــيره يـــادونه ، دسبـا زرغونې هيلې
دزخــمـي مـاضـــي پيغوريم ، دسبا په بنهو زانګم
داميد پـــلوشه تـتـــه ، دتـيـارو ډيــــوه روښانه
په دې تکه توره شپه کې ، درنهـا پـه بـنهـو زانـــګم
دحسين سا قي تر څنګه ، صهبا پـيـالـه نــسکوره
دلمبو دخدای په وړانـــدې ، دګنـاه په بنهو زانګم
دخندا په اوږو وړمـــه ، جـنـــا زې مـــې دخوښيو
دماتم په لمن لو بم ، دخـنـدا پـه بـنهــو زانــګم
هلته سر ديار په وره کې ، دلته سر پـه زنـګانـه يم
هلته خاورو سره خـاورې ، دلته بـيـا په بنهو زانګم
په مذهب دبد مستۍ کې ، نه کافر نه مسلمان شوم
خــم په سـر پـو رتـه کومه ، دصهبا په بنهو زانګــم

آلمان /می /١٩٩٣

# د شپې په څنو کې

يو ځلې بيا لړ ښکاره شه ، زلفې وښوروه
د حسرتونو ميلمنه شه ، زلفې وښوروه
د شپو په څنو کې مې شپې دي ، شپې په شپې تيروم
د لمر خاته د وخت شغله شه ، زلفې وښوروه
يوسف تری لاړو د کنعان کوڅې شوې شړې پاتې
د زليخا د مخ جلوه شه زلفې وښوروه
ترخه خمار مې زهر جنې کړې ترخې د ژوندون
ته د صهبا ډکه پياله شه رلفې وښوروه
لکه خوبونه راته ښکاري مسافر وختونه
ته د يادونو سلسله شه ، زلفې وښوروه
سپېلې د منې باغ په باغ ګرځي ګلان رژوي
د پسرلي خوږه ورمه شه ، زلفې وښوروه
ګوره دا مات سر مې چې هېڅکله ټيټ نه کړې چاته
زما پښتو زما شمله شه ، زلفې وښوروه

آلمان ۲۴/ ۴/ ۱۹۹۴

# داغز په ثوکو

دايې دوصل ، انتظار باسم
که داغزو په ثوکو لار باسم
په سر ورځمه په پښو ورځمه
دا ځل آرمان مې د ديدار باسم
نن يې ساقي راته په خم کې راکه
چې د تمام عمر خمار باسم
شپه له ماښامه تر سهاره پورې
زړه کې تصوير مې د دلدار باسم
د خيال په ګوتو مې دزړه په دړه
انځور د مينې د مزار باسم
تندې په تشو سجدو نه سولوم
دعشق ناره په سر ددار باسم
د پرخې سترګو کې هينداري ګورم
ښېښې مې د تيږو له بازار باسم

آلمان نومبر/ ۱۹۹۲

# د دوزخ په څنډو

راشه تر څنګه مې حسينه ساقي
دزړګي سره نازنينه ساقي

راکه درياب ، درياب جامونه راکه
دعمر تړي يم ، خمونه راکه

ساقي سکروټې راکه ، اور راکه
درد راکه ، چيغې راکه ، شور راکه

دخم تر څنګه مې بسيا که ساقي
داګونګه ژبه مې ګويا که ساقي

د شپې په دښته کې مې شپه ده ساقي
شپه مې دزړه په کور خپره ده ساقي

راکه دميوو سباوون راکه
درڼا جام راکه ژوندون راکه

راکه دلمر غوندې روښانه شراب
راکه بې پيله بې پايانه شراب

هغه شراب چې پکې ځان ووينم
ځلا دحسن دجانان ووينم

چې پکې هير کړم دابې خونده ژوندون

دابــې ثــمــره ، بــې ګر ځنده ژونـــدون

چې پکې ډوب شمه ، چې ورک شم پکې

چې له درند و غمونو سپـــک شـــم پکې

* * *

ســاقــي بـيـا راغــې دغــمونو مابنام

تياره مابنام دما ښـا مـونـو مـا ښـام

ساقي راځـــه چې زمانـــه بـــله شــــوه

لومه شوه بـــله اودانـــه بلـــه شـــوه

بيا زوړ زاهـد پـــه تــوبـــو بـار راغلی

بيـا ددرو غجـنې تـــقـــوا وار راغـــلی

بيــا مــحتســب دی بـيـا تکفير دمينې

بـــيـا دتسبو لړ شـو زنـځير دمـــيـــنې

* * *

ســاقـــي بـيـا راغـلـل دخزان بادونه

اورين بـادونـــه دتـــوفـان بـادونـــه

بـــيـا دوږمـــې سينه کـــې سا وچه ده

بيا دغوټۍ خوله کې خـنـدا وچـــه ده

بيا د غو نچې ګريوان له غـمه څـيـرې

بیا دبلبل زړه له مـــا تـــمـــه خـــیـــرې

ساقي را ځه چې میکـــدی بـــلې کـــړو

تیاره رابره شـــوه دیـــوې بـــلـــې کـــړو

راځه چـــې واړوو خـــمـــونـــه پـــه ســـر

تـــر خـــو ابـــو کـــې سره اورونه په سر

راغـــلي غـــم دتـــیـــریـــدلـــو نـــه دی

داوړی دیـــــــو دمـــــړیـــدلـــو نـــه دی

دفلک ســـترګې ریـــا کاری ستـــرګـــــې

درغجنې ستر ګې ګناهکارې ستـــرګې

بیا خونړی ښکاري بیا سرې ښـــکاري

بـــــیـــــا داورونـــو سلسلې ښـــــکاري

* * *

ساقي راځه چې بیا پیالې جـــــګې کړو

پټـــو مستیو نـــــه پـــــردې جګې کړو

راځـــــه ویـــدې نشې راویښې کړو بیا

بـــــلې لمبې نشـــــې را ویښې کړو بیا

بـــیـــــا درنـــدانـــو هنګامه جوړه کړو

بـــیـــــا د مستانـــو غلبلبه جـــوړه کړو

بیا د غوټۍ سترګو کې ناز وګورو

بیا په دانه کې دژوند راز وګورو

واورو د ګل د غوړېدو سندره

د شنه غزل د ټوکیدو سندره

د مینې لوبه په فکرونو نه شي

په خامو خامو تدبیرونو نه شي

مینه د زړونو بلیدنه غواړي

مینه له سره تیرېدنه غواړي

مینه په اوښکو کې خندا لټوي

مینه سکروټو کې بقا لټوي

راکه د مینې په نوم اور راکه

راکه د تاک د سترګو تور راکه

ساقي له ځانه ورکیدل غواړمه

د میو جام کې ډوبېدل غواړمه

خندا مې هیره له زړا نه پر دی

له ځانه تللی له دنیا نه پر دی

ساقي د لوېې ګناه تور ماتوم

دا دوزخې تنده په اور ماتوم

چا ځان بدل کړ، چا کو څه بدله
څوک د رنګو نو په خم و لمبېدل
څوک د وختونو په باد ورپېدل
څوک مقتدي او ځوک په امام پسې لاړ
څوک په انګور او څوک جام پسې لاړ
څوک یې کعبه څوک بتخانه کې غواړي
څوک یې د سهوې یه سجده کې غواړي

خو:

زه له سجدوو زه له بتانو ستړی
زه له دروغجنو امامانو ستړی
زه نا آشنا په نا آشنا کلي کې
ستر ګې نمجنې د خندا کلي کې
زه ګناهګار زه بې ګناه ګناهګار
زه د سپیڅلې اقتدا، ګناهګار
ساقي په میوو کې لمبل غواړمه
د ګناه پیتې سپکول غواړمه
له ځانه تښتم د جانان په هیله
له کوره وځم د بیابان په هیله

زه د دوزخ پــه څـــنـــډو ولـــو بیدم

زه د جــنــت ګـلــو کـــې وســـوزیدم

زه د کوترو په خیـــال وزنـــګــیــدم

زه د وختنونو پــه ټـــال وزنـــګــیــدم

ما خپله ورکه پیـــدا نـــه کـــړه چیــرته

ما هغه تللې زما نه کـــړه چــیـــرتـــه

د نور په هیله په تـــیـــارو واوښـــتــم

د ګل پـــه لــټــه پــه اغـــزو واوښتم

په سپینو سپینو کـــې تـــور ولـــیــدل

غوښتل مې نور څه، خـــو ما نور ولیدل

راکه ساقـي راکه سپیـــڅلـــې اوبـــه

د تاک له ســتــرګــو څــڅیــدلې اوبه

راکه چې ویې څښم لمبـــه، لمبـــه شـــم

اور شم، سکروټه شمه، سره لـــمبه شـم

ساقي راغلـــی یـــمـــه وار مـــا تـــوم

ساقي د ټول عــمــر خــمـــار ما تـــوم

آلمان / اپریل /۱۹۹۳

# ښکار

کلونه وشول، بسرلی نه راځی
خمکه بوره پاتې ده،
شړشم چا ونه کرل.
زموږ د کلی بزګران،
لیندۍ په لاس،
ښکار ،
د کوترو کوي.
زه به د ګلو ، زیړي، غونچي،
دآشنا ،
زلفو ته،
له کومه
راوړم
کابل

کب/ ۱۳۴۹

# ګزمه

د باد ګزمه ده د باران ګزمه ده
زمونږ په کلی د توفان ګزمه ده
بیا مې د زړه په دي تالا جونګړه
د غم ګزمه ده د خپګان ګزمه ده
نه د ګل بوی،نه د بلبل سندره
په باغ او راغ کې د حزان ګزمه ده
تر څو به ژاړي د اغیارو ستم
زړګیه،تم شه،د جانان ګزمه ده
په ګلو اوری د سکروټو ږلۍ
د خدای حرم کې د شیطان ګزمه ده
ژاړي په سرو ستړګو نیمزالي غوټۍ
په چمن ګډه د تالان ګزمه ده
نه میکده اونه کعبه پاتې شوه
کله د" شیخ "کله د" خان "ګزمه ده

۱۹۹۶/ ۵/ ۱۹ آلمان

# اغزنې توبې

خــوله يــې له شونډو په سـلام اخـلم

لــه خــپـله بـخـتـه ، انـتقام اخـلم

ســاقــي تـندى دې راتــه مه ګونـځوه

نــن يــې له مـستو سـتــوګو جام اخلم

زاهــده ستــا دې وي اغــزنې تـوبې

زه لــه غــو ټــيــو نــه پــيغام اخلم

کــه دې خندارانــه پردې شوه نو څه

خــپـلو دردونــو نـه بـه کـام اخـلم

د مــخ کــابـل دې رانــه مه سپموه

نــاز دې پـــه ستـــرګو تر باګرام اخلم

هـــره شــپـبـه شـــې ګـلور ينه راته

چـــې د أشـنـا کوڅــه کې ګام اخلم

آلمان

۱۵/۵/۱۹۹۴

# ساقي دګلو وخت دی

ساقي دګلو وخت دی ، يوه مسته پياله راکه
له عقله مې پردی که ، په جنون مې مبتلا که
ډيوې دمـــيوو بلې که ، تيارې رڼا رڼا که
ماتـم له ســره واړوه ، وختونه په خندا که
دزهد شپه سبا که دروا غجن زاهد رسوا که
دجام په لمبو پـاکې ، تورې نښې دتقوا که
څـــپې درڼا پورې که ، په تورو مانښامونو
دشپې زلفې جړاو که ، دسکروټو په لالونو .

* * *

په شنو دښتــو راوختې لښکرې دسرو ګلو
ککې دوريځو سرې شوې دالماسو په لونلو
راخـــيژي لــه چـــمنه ، آوازونه ، دبلبلو
غـــاټولو په سر ايښې رنګينه پيالې دملو
غــونچې دګلو راوړې مستو پيغلو په وربلو
وربې زلفې يې خيشتې کړلې په عطرو دسنځلو
څـــپې شــوې درنګونو په تمامې دنيا پلنې
په سرو غميو ډکې شوې دشنه آسمان لمنې .

* * *

ساقي دګلو وخت دی ، ګلالې شول غاړې غرونه
درنګ په سين کې لامبي ، يخ وهلي ګلکڅونه
دغـــره پـــه دړه کاږي لمر ، دزرو انځورونه
په شنه سهار کې پرانيستل ، غوټيو ګريوانونه
پــه خـــړو دښـــتو اوري ، دياقوتو بارانونه
سپــــرلي پــــه غـاړه راوړل دسنبلو اميلونه
په غره او په راغه کې ، دوړمې زلفې خورې دي
له ځمکې خوټيدلې بيا درنګ اوبوی چينې دي .

* * *

ساقي دګلو وخت دی ، بيا دوران شو دمستيو

په مړو بوټو کې وچلیـــده ســـا د پسرلیو
پیغام دژوند راوړی غزلبولو تـــوتـــکیو
ددښتې ناوې کیښودل خالونه د کیـــږدیـــو
قالینې غوړیدلي ، په ډاګونو ، په غونډیـــو
صبا په تږیو ویشي خوږې شونډې د شهـــیو
دمشکو عطر وشیندل په غرونو کې هوســیو
اوږې دغوټۍ پورې شوې د څانګو په غړیو .

* * *

ساقي دګلو وخت دی راچې پورته کړو جامونه
په چیغو کړو روښانه ، دا خـاموشه ماښامونه
دتورې تروږمۍ په زړه کې بل کړو سره اورونه
د درد په ستنـــــه و ګنډو ، د زړونو پرهرونه
دشپـــې زلفو کې وټومبو ، دسپین سهار ګلونه
د باغ له سترګو ووینځـــو ، د یخ ژمي خوبونه
راووځو له ځانه او ور ګډ شوو په جهان کـــې
ځان ووینو له سره بیا په سترګو د جانان کـــې .

* * *

ساقي د ګلو وخت دی ، بهارونه لا ژوندي دي
دتاک مـړاوو رګونو کې اورونه لا ژوندي دي
دمینې دردآبـــاد کې ، فریادونه لا ژوندي دي
د سترګو په چینو کې ، دریابونه لا ژوندي دي
لا ماتـــې ارادې نه دي ، هوډونه لا ژوندي دي
لا سوې پتنګان نه دي ، اورونه لا ژوندي دي
دا بــــاغ به بـــیا خړوب شي د بلبلو په سندرو
دا ونــــې به سینګار شي ، درنځا په مرغلرو .

کابل

وری ۱۳۷۰

# دنکریزو پاڼه

هیله دوړمــــې شوم،په قدم دبهـــــــار پریوتم

سیورې دغــونچې شوم،دبلبلو په ښــــارپریوتم

شین ښایست دګلو مې په سرو لمبو کې وموندہ

پاڼـــه دنــــکریــزو شوم،په ګوتو دیار پریوتم

سوز مې په سلګو کې درباب دساندو واخیسته

ساه د سربنــدې شوم ، په نغمه کې د تار پریوتم

تا خــــو د یار غمه ، زمــا ټوله هستې خپله کړه

زه لکـــه ملنګ ، دخپــل ارمان په مزار پریوتم

ته لکه لمــــبه ، زما دزړه له کلې پورته شــوې

زه لکه ایــــــره ، په خوړ لنیزه انګار، پریــوتم

المان

دسمبر ۱۹۹۸

# دکابل غمیزه

جنګ دی ،جنګدی ، په ښپیلي کال جـــنګ دی

بیا په ښکلي ، نـازولي کابــــل جنـــــګ دی

دود یې خیژي له ســـوري ســـوري ګـــوګله

بیا په سوي ، نړیـــدلـــي کابـــل جـنګ دی

* * *

کابـل نــه دی ، کـــربـــلا ده ، کابـل نه دی

دوحشت خړه بیدیــــا ده ، کابــــل نــــه دی

هره خواته پکې چــــیغـــې دي ، ماتـم دی

مروره تــري خـــــنــــدا ده ، کابـــل نـــه ده

* * *

کابـــــل ژاړي ، نــازولـــی کابــل ژاړي

دښــمنــانـــو ، زورولـــی کابـــل ژاړي

چې مدام به یې خوله ډکــــه لـــه خـــنـــداوه

اوس غمـونـــو دردولــــی ، کابــــل ژاړي

* * *

بــیـــا ژړاده دکابـــــل هـــــره کوڅـه کـې

واویلا ده دکابـــل هــــــره کــــوڅـه کـې

یـــزیـــدانـــو هـــره خـــوا تـــورې ایستلي

کربـــــلا ده دکابـــــل هـــــره کـــوڅـــه کې

*　*　*

پــــه کابـــل بلا پـــریوتـــې ، وطنــــوالو

پـــــه هـــر کــــور ژړا پریوتې ، وطـنوالو

هــــره خـــوا دوینـــو بـــوی دمرګ اواز دی

پـــــه وطـــــن وبـــا پریوتــــې ، وطـنوالو

*　*　*

کابـــل سو زي سرې لمبــــې دي کابل سوزي

کـــور پـه کور باندې جګړې دي ، کابل سوزي

سپـین دیـوان ورته دخیر په غونډۍ ناست دي

د ســــکروټـــو سلسلې دي ، کابل سوزي

*　*　*

کابل وران شو ، دنیکونو وطـــن وران شـــو

دافغـــــان دغیـــــرتونـــو وطـن وران شو

هنـــدو کشه ! ولې نه چوې ، ولـــې نـــه مرې

چـــې کابـــل ، داننـګونو وطــــن وران شـو

*　*　*

شنې لوخـــړې پـــورته کیږي ، کابل ســـوزي

دپغمان اښــــکې بـهيـږي ، کابل ســوزي

آسمايي په چــيغو چــيغو داســـی وايــــي

کابل سوزي . ايرې کيــږي ، کابــل سوزي

*    *    *

په کابل کې اوس نه پـــوهــه نه هنر شـــته

نه کتاب شتـــه ، نه قلم شتــه ، نه اثرشـــتــه

هســــې شـــپـــه دجــــهــالت ده را ختـلې

چې نـه ســتــوري پکې ښکاري اونه لمر شته

*    *    *

يـــه زخمي زخمي کابـــله درنــــه جــارشم

دافغان دپـــګړې ګله درنـــه جــــار شــــم

دوحــــشــت په اورکـــې سوزې ايرې کيږې

دود دې پورتـــه له ګـــوګله درنـــه جــارشم

*    *    *

ځــومـــره خــوار ځومره بې وسه شوې کابله

چـــې ازار له ، له هره خــسه شــوې ، کابــله

دماتــم په ورځ دې هيڅــوک پـکار نـه شول

تــــــر خـــو پــــيښو تـه بې کسه شوې کابله

آلمان      جنوري ۱۹۹۳

# د یقین په لټه

ستا د ستر ګو "سیپارو "کـــې مې لوستلي

د تـــلـــپـــاتـــې خـــوږې مـــیـــنې "آیا تونه "

څه پروا ده که لمو نــــځونه مې " قضا "کړل

یا مې شوندې ستا په " ذکر " سترې نه شوې

د خپل زړه " مسجد " ســپیځــلی درته ساتم

بـــلــــوم پکې داوښــکــــو څــراغونه.

* * *

چـــی د مخ " کعبه " دې و نـــیوه بـتـــانو،

لـــــه تندي نه مې زاړه خا پـــونـــه لاړل

زه خو هسې د سجدو ســو داګــر نــــه یم

نه جنت غواړم نه ســره دوزخ تـــــه ژاړم

خو "روژه "به په " طـهـورو " ماته نه کړم

که نصیب مې شول د شونــډو " ذکاتـونه "

د کـــــو ثــرو د پیالـو په تـــمـــه نه یم،

بس یوازې یو دیدن درځني غـــــــواړم

خپله ورکه لټوم ستا په پـــیـــدا کـــې

د "شـک " ترې د" یقین " چینې ته بیا یم

معبده مــــې په خپل زړه کې جوړه کړې

پکې ستایـــــمــه دمینې شنه یادونه

*     *     *

دټول عمر عبا دت به تـــرینه ځارکړم

که یوه شپه مې منلی پــه ګناه کـــړې

له رنګینو جنتونو نــه به تـــــیـر شم

که یوه پیاله سکروټې راتــه راکـــړې

ددنیا او دعقبا پروا مـــې نـــــشـــته

ما دعشق  په پښو کې توی کړل ثوابونه

۱۹۹۸ / دسمبر آلمان

# جنازي

هـــره ورځ د أرمـــانونو جنازي وړو

هــــد يرو تـــه دګلونو جنــازي وړو

دبـــــادونو كرونده په اوښـكو پالو

د شـــهيـــدو بـــهارونو جنازي وړو

داميـــد بـــاغچه دوينو جزيره شوه

دوږمــــــي دشنو وزورنو جنازي وړو

دبدرنګي شپي له سيوري نه لمر غواړو

دګلمخو سـهارونــــو جنـــازي وړو

پـــه ايرو كي لټوو دقســـــمت ستوري

دهـــيندارو ديادونو جـــنـــازي وړو

# کالیزه

په هغه توره اوتبجنه شپه کې ،

چې تازموږ له کلي کډه وکړه

ما دې دتلو لاره ، په اښکو با ندې وويځله.

او ستا دپله خاورې مې ،

په خپلو ستگو باندې ومو ښلې.

* * *

په هغه توره او تبجنه شپه کې ،

چې تا زموږ له کلي کډه وکړه ،

يوه ترخه او رژوونکې سيلۍ

پوله په پوله او کوځه په کوځه وگرځيده ،

او دخندا کلا ن يې ورژول.

له هغې شپې نه بيا تراوسه پورې ،

زموږ دکلي دبامونو په سر ،

څوک کشمالې نه کړي ،

او دويالې په غاړه ،

ويلنې نه تو کيږي ،

او دګودر دشنې جلګې له پاسه ،

له سرو منګیو نه یوازې څو کودي پاتې دي.

* * *

له هغې تورې او تبجنې شپې نه ،

چې پکې تا له کلي کډه وکړه

دادی کلونه تیر شول

اودزمان دکتاب ډیرې پاڼې واوښتلې ،

نه بیا دکلي دبامونو په سر ،

چا کشمالي وکرل

نه دویالو په غاړه ،

ویلیني وټوکیدل

او نه ګودر بیا په منګیو ، پټ شو.

* * *

په هغه توره او تبجنه ښپه کې ،

چې ته له کلي لاړې

خندا له کلي لاړه.

ګلان له کلي لاړل

او اوس دکلي په آسمان کې ستوری نه ځلیږي ،

سپوږمۍ دوريځو تور تيکری اغوستی

آسمان له ځمکې مرور ، ځمکه له ستورو ځنې ،

وږمه له باغه بيګانه ،

ګل ،

له بلبله ،

پردی.

هره شيبه اوهره ورځ ده دماتم کاليزه ،

دغم کاليزه ،

دستم ،

کاليزه.

کابل ۱۵/۴ ۱۳۶۶

# ماڼې که جونګړه ؟

نوره دې نه یادوم ،

نور دې د کور له مخې نه تیرېږم

نور دې کوڅه په اوښکو نه وینځمه

نوردې دکلي دچنار په ډډه نوم مه لیکم ،

نور دې دپله خاوري په سترګو باندې نه موښمه

اونور دې لاره دګودر نه څارم.

* * *

آرمان، آرمان هغه خوږې د انتظار شېبې مې،

چې ستا د زلفو په دار و ځړیدې.

آرمان، آرمان د هیلو تاندې نا زنینې غوټۍ

چې ستا د مینې په اور و سوزېدې.

آرمان، آرمان هغه د کلي د سنځلو ګلان

چې د نا پایه پسرلي په سهارونو کې مې

ستا د راتلو په لاره وغوړول.

اوله رنګینو امیدونو نه مې،

تا ته د زړه په سر ماڼۍ جوړه کړه،

خو ته یوازې د یوې شېبې، یوازې د یوې،

لنډې شېبې له پاره

زما د هيلو رنګينه ما ڼۍ ته ننوتې ،

بيا دې په سرو منګلو ،

زما د زړه په وينو ،

زما د هيلو د ما ڼۍ په ديواله وليکل،

چې دا جونګړه خو زما د اوسېدلو نده

او بيا د تل له پاره،

زما د زړه له کوره ووتلې.

* * *

نوره دې نه يادوم،

نور دې د کور له مخې نه تېرېږم ،

نور دې کوڅه په اوښکو نه وينځمه ،

نور دې د کلي د چنار ،

په ډډه،

نوم،

نه ليکم.

کابل ۱۳ ۱۹/۴/۷۰

# د رڼا خبره

شـــپـــــه شــوه د رڼا خبره هيره شوه

تا نه چې زما خبــــــــــره هېره شوه

ستا خوارۀ يادونه مې پـــه زړه ووري

نور مې د هر چا خبره هېره شــــــوه

ورانه ميکده شوه، د نيا ورانه شــوه

خم نه د صهبا خبر ه هيره شـــــــوه

ما ويل که راغـــلـــــه ورته وايم يې

باغ شو د غوټيو په ســرو وينو سور

ګل نه د خندا خبره هـــيـــره شــــوه

هيره يې وعده کړه د سبا پـــه نـــوم

ئکاري نـــن يې بيا خبره هيره شـــوه

ښـــکاری نن يې بيا خبره هيره شـوه

پــــاتې منتظر يې ځلېدو ته شـــوم

لمر نه د ځلا خبره هـــيـــره شـــــــوه.

آلمان

۱۹۹۳ نومبر

# د ونو ماتم

شپـــه راخــتلـــــــي ده، سبا نشــته
تيـــاره رابـــره ره، رڼـــا نشـــــته
خــمـــونــه تش دي ميکدې ويجاړې
شرنګ د پـــيالو نشته، غوغــا نشته
بــلبـــــلان ځـــي ونــو ماتم نـيولی
د ګل پـــه شـــونډو کـــې خندا نـشته
مجنون د تورې شپې په دښته کې ورک
شـغله د حسن د لـــيــــلا نـــشـــته
نــــــه د تاک لور، نه يې بربنډه نـخا
هـــم يـــې لـذت هـــم يې ګنا نشته
د زاهد عمر لـــه درواغـــو نـــه ډک
يوه شــيبــه پکـــې رښتيا نـــشتـــه
دنيا له ښکلـــو ښاپېرو ډکـــــه ده
خواږه کاته مې د آشـــنا نـــشتـــــه
کلی هغه دی کوڅې هغه دي خــــــو
د ليونو پکې غــو غـــا نـــشتـــــه

ساقي ! ما ښام شو ډيوې ولګـــــوه

ستوري پر ېوتي دي ځلا نشتـــــــه

آلمان/ مارچ ۱۹۹۷

د باد په کنډوالوکې

کاوون توفاني

# دسکروټو ښار

نن يې بيا خونړې خال په رخسار کېښود
په جلوه کې يې ښايست په ګلزار کېښود

عشقه،ور يې پــــه رښتيا دسلطنت شه
دزړه تخت مې دسکروټو په ښار کېښود

له جنته دې در تـــير شـــــومه زاهده
نن مې ســرپه دروازه کې ديـــار کېښود

په تندې مې دسجــدې داغونـــه نشته
ميکده کې مې زنځير او زنـــار پرېښود

زه دخپـــلو سادګيو قـــــرباني شوم
چې مې لاس په کوتنۍ کې دمار کېښود

پرون راغله اوريې بل راتـــه پـــه زړه که
نن يې ګل راته پــــه سوې مزار کېښود

ددې وخــــت ناخوالې وګوره کاوونه
په ساړه ژمـــې يـــې نوم دبهار کېښود

# د خدای په ژبه

جانانه پا څېړه د یوه بله که

د زړه روښانه مملکت مې تروږ میو ونیو

سترګې مې نه غړېږي ، لار نه وینم

هوا درنده ده دلته،

سا نه اخلم.

کړکۍ مې پرانیزه د باغ په لوري.

* * *

جانانه پا څیړه د یوه بله که

زه د ابلیس په ژبه نه پو هیږم

ماته د خداي په ژبه و غږیږه

نور له دیدنه د شیطان سترې یم

لږ راته مخ د پر ښتو وښیه

لږ مې نظر په رڼا ولمبوه،

لږ مې د لمر په څڅو وزنګوه

لږ راته حورې د شغلو وښیه.

پدې درنده هوا کې ،

یوازې کرکه ووري ،

کرکه خاندي،

کرکه نا څي ،

او د خوږې مينې تنکي ګلونه

دو چو شونډو په سپيرو د ښتو کې و سو زېدل.

يوازې کرکه ده چې نا څي د ابليس په ژبه،

زه د ابليس په ژبه نه پو هيږم،

ما ته،

د خدای ،

په ژبه،

و غږيږه

کابل غبرګولی ۱۳۷۱

د باد په کنډوالوکې

کاوون توفاني

# شاړې کوڅې

وران دی مالتونه، کوڅې شـــــاړې دي

لور په لور غمونه، کو څي شـــــاړې دي

سوزي مې د کلي شنې با غچې پـــــکې

بل دی سره اورونه، کو څې شـــــاړې دي

لاس کې مې دمینې ګلان مـــړاوي شول

جړ دي وربلونه، کو خـــي شـــاړي دی

نه د پېغلو جوش نه د زلـمـــو خـروش

شړ دی ګودرونه، کو خــي شـــاړې دي

وخت د بې ننګۍ دی دنیـــا بـــلـــه ده

مړه دي غیرتو نه، کوخـــې شـــاړې دي

نه د سهار ستوری نه د لمر خــــړیــــکه

بر دي تورتـمونه، کو خـــې شـــاړې دي

تشې میکدې، خـمـونه تش پـــرا تـــــه

تش پکې جامـونه، کوخـې شـــاړې دي

زانګې مې قسمت د شپې په زلفـــو کې

شپې دي او خيالونه، کو ښې شارې دي

تللې ده خندا نوره له کلي نه

ووري ما تمونه، کو ښې شارې دي

تيتې چې شملې شوې جنډې جکې شوې

سره شول مزارونه، کوڅې شارې دي

توره ترورمې ده لارې ورکې دي

مړه دي مشالونه، کوڅې شارې دي

آلمان اپريل ۱۹۹۶

## خوب

ويده وم خوب مې ليده،

چې د شپې دروند او پړ سبدلى بدن،

زموږ د کلي د غونډۍ له پا سه

د سپين سهار،

په دار،

ختلى،

ځړېدلى، ښکاري

ويده وم خوب مې ليده

چې د لمر پېغلې او زرينې، نا زنينې لونې،

زموږ د کلي د ګلبوټو په قالينو باندې،

خاندي،

مستې موي،

نڅاوې کوي

او په خمارو، شپو وهلو ځانګو وېشتې د رڼا جامونه.

ويده وم، خوب مې ليده.

* * *

ويده وم، خوب مې ليده،

چې يو بيساري، ګلالي پسرلي،

زموږ د کلي، باغ، په سرا خيستى،

او د غوټيو بهير،

زرغونو لښتو کې ځپې، ځپې رنګونه کړي.

ويده وم خوب مې ليده،

چې ډلې، ډلې کليوالې مسافرې مرغۍ،

بيرته ستنېږي له پرديو نا آشنا پا غونو،

او بيا له ډېرو کلو وروسته،

د خپل کلي،

د چنار ،

په څانګو ،

د ناز خوبونه کوي

ويده وم،

خوب مې ،

ليده،

خو چي را پا ځېدمه،

سترګې مې پرانيستلې،

و مې ليدل.

د شپې بو يناک او پړ سيدلی بدن،

لکه ورسته او کر غېړنه وږمه،

زموږ د کلي په کو ځو کې لا تر اوسه جاري،

او د لمر، پېغلې،

نا زنينې،

او حسينې

لونې ،

زموږ د کلي د ديوال تر شا هما غسې په خوب ويدې وې

او باغ،

تر اوسه،

رژېدلی،

نښتېځلی ،

پروت دي.

نه غو ټيو بهير،

نه د ګلونو کاروان،

نه د رنګونو ځپې ،

نه د مرغيو د وزرونو ، اوز،

او نه د لښتو تنفس،

چمن،

خالي،

له ټولو.

يوازې شپه،

يوازې دود ،

يوازې خړه و سپنيزه هوا ،

زمونږ د کلي په کو څوکې ، جاري.

المان

نومبر ۱۹۹۵

# نا هید

توره شپه کې بله کړه د سرو وینو ډیو ه نـــاهـــیـد

چیغه د پاڅون شوه د ننګونو حماسه نـــاهـــیـد

اور یې د ابلیس د هـــوســو نو په کور پـــورې که

وو ته له ځانه، شوه د ټول ولس شـــمله نـــاهـــیـد

پانې ، پانې پرېرته د سرو ګلو غو نـــچه نـــاهـــیـد

وځلېده ،وخند بده، سرو وینو کې ســـره نـــاهـــید

هغه د ملالې د یادونو سره جنـــډه نـــاهـــیـــد

هغه د اقغان د غیر تونـــو تـــرانـــه نـــاهـــیـــد

ګډه یې غوغا کړه په خامـــوشـــو ماښـــامونو کې

بـــله یې رڼا کړه، تـــروږمـــیـو د وخـــتـونـــو کې.

* * *

ګل د ببغلتوب،یې د قاتـــل د غـــاړی هـــار نـــه کـــه

ښاد یې په خپل حسن د وحشي هـوس ښـامار نـه که

" نـــه " یـــې د قدرت د لېونو پر تندي ولیکل

لړ د تورو زلـــفـو یـــې بـــې سرو ته دستار نـــه کـــه

لنډ یې که له ځانه د یـــاغـــي ستـــم نـــاولـــی لاس

تور دښمن د خلکو یې له ځانه سره یار ته کړه
جګ غیرتي سر یې ټیټ په مخ کې د اغیار نه که
ځان یې قرباني که، خپل غرور یې تر پښه ځار نه که
ستوری شوه، سپوږمۍ شوه،د ننګونو بام ته وخته
کړیکه د ،غیرت شوه، د یادونو بام ته وخته.

* * *

وایه اسمانه! تا د وینو ځلا ولیده
تا د شهادت د ناوې،مسته خندا ولیده
تا په خپل هیوا د باندې مینه لیلا ولیده
تا په خپل هیوا د باندې مینه لیلا ولیده
تا یې په تندې باندې لیکلې وفا ولیده
تا یې په خوږو سترګو کې راز د مینې ولو سته
تا یې اننګیو کې سپېڅلې حیا ولیده
تا هغه سپر غۍ،هغه د تورو بریښنا ولیده
تایې په لمنه کې د ستورو نڅا ولیده
وګوره اسمانه! موږ سرونه ټیټو ورته
خاورې د پښو یې په سرو سترګو ښکلوو ورته.

* * *

وو ایه اسمـــــانه تا د شپې قا صـــــــد ان ولـیـدل

تا د پرښتو جامـــــه کې تور شیطـــانـــان ولـیدل

تا د افغانـــانــــو د عـــزت تـــاجـــر ان ولـیـدل

تا د وینو تـــرږي، خـــونـــړي قـصابـــان ولـــیـدل

تا په کتا بونو بار بې علـــمـــــه شیخـــان ولـــیدل

تا دکنډوالو په تـخـت سپـــاره امیران ولـیـــدل

تا دننګ په خــــاوره کـــې زنګي غلامان ولـیدل

تا دچـــلتارو نــــو دهـــیواد ملنګان ولـــیـــدل ؟

څنـــګه ښـــکاریـدل دتـــرورېمیو دښامار بـــچي

دا په غیرتي کابل ، پـــریوتـــــي دنـــاتـــار بچي.

* * *

دا زخمي کابـــل ، دغـــه پــه سرو وینو لړلی ښار

داد اهریمن ، تـــــورو منګلو تـــه لویدلـی ښـار

دادتـــا لانــــګروله ستـــــمه سوزیــدلـی ښار

داپـــه پـــته خـــوله پـــــه سلو ژبوغږیدلی ښـار

دا هره شیبه په ماتـــمـــونـــــو ژړیـــدلـــی ښـار

دادګلو ښـــار ، زمـــوږد پیغـــلو نازولی ښـــار

داپــــه جـــګه غاړه هردښمن ته دریـدلـــــی ښار

دادیـــرغـــلګرو دسپـــرو دستـــرګو خـــلـی ښار

بـــیا دخپلو لوښـــو او زامنـــو پـه ویـر ، وژړیـــد

بـــیا دځـــوانـــو زړونو په زلمیو وینو ولمبـــیـد

* * *

یه اسمانه ، دلته خومرګونـــه ستړي شـــوي دي

چیغې ستړي شوي ، فریا دونـــه ستـــړي شوي د ي

لارې ستړې شوې دي ، ګامونـــه ستړ ي شـوي دي

او ښکې ستړې شوي ، ګریوانـــونه ستړي شوي دي

هیلې ستړې شـوي ، ارمانـــونه ستـړي شوي دي

زړونه ستړي شوي دي ، غمـونه ستـــړي شوي دي

دلته په جنت کې دوزخـــونـــه ستـــړي شوي دي

دلته په ګلونـــونـــو کې اورونه ستړي شـــوي دي

دلته پـــه دې خاوره ، دستـــم غـــدۍ پـریـوتې ده

دلته پـــه دې خلکو ، دماتم غـــدۍ پـریـوتـــې ده .

* * *

وګـــوره اسمانـــه ، اراده دپـــیـــکار وګـــوره

لاره دغیرت کـــې ، هـنګامه دایـــثار وګـــوره

ژمي دتـــاریخ کې سره غاټـــول دبـهار وګـوره

ســــــره غيرتي وينه د ناهــيـــد  په رخسار وګــوره

دلته ويـــــره نــشته له ســرونــــو سـره لوبـې دي

دې لمريـنـــــه خـــاوره کې ، د ستـــورو مزار وګوره

پـــاکې پلوشې بـه يې دشپې ګريوان ور خيرې کـړي

پيغلو دکابل سره ، تـړون د ســـهـــار وګـــــــوره

د ايـــاغي ککـــرې اهريمـن ته دسجـــدو نه دي

دلته دستم تـــوري جنــډې درپـــــيدو نـــه دي.

آلمان

مارچ ۱۹۹۴

د باد په کنډوالو کې

کاوون توفاني

# راځه چې وژاړو

راځه چې وژاړو په چيغو چيغو

دلته خو نور څه د خندا لپاره پاتې نه دي

* * *

دلته رڼې مېکدې وسوزېدې

دلته نشې په وير بدلې شولې

چې د مستيو هنګامې وې پکې،

لاړې هغه کوڅې، شړلې شولې

دلته، وحشي باد نو ټول ګلونه ورژول

دلته تر خو سپېليو شنه باغونه و سوزول

چې ستا راتلو ته يې شپې شمېرلې

چې ستا پلو نه يې په عطرو وينځل

هغه تنکۍ،

تنکۍ،

غوټۍ،

بهاره، پاتې نه دي.

* * *

هلته چې ما او تا، د ميني په سپېڅلې نامه،

د زړونو شمې، د قصو په ښار کې بلې کړلې

هلته چې موږ د شپې وزرونه، په لمرینو پلوشو و تړل

هلته چې موږ د مرجاني اوښکو ځلانده غمي

د ارمانونو د ماڼۍ په دېواله وټومبل

تاندې غوټۍ مو د وږمې په لارکې کړلې

کودرې هم اوس د قصوله ښاره پاتې نه دي.

* * *

دلته د تاک ونه کافره بولي،

دلته سندرو ته زندۍ اچوي

دلته د پوهې دروازې تړلي

دلته، تخته او تبا شیر اوس شیطاني توري دي.

قلم، څوک نه پېژني ،

کتاب معنا نه لري

دلته په شونډو اوس یوازې د ټوپک قصه ده،

د الفبې، خوږې نغمې له خونړي نا تاره پاتې نه دي

* * *

هغه د کلي سپیدار، او هغه جګې د چنارو ونې

چې یې سرونه رسیدل تر شنه اسمانه پورې،

د مجنون ولې غوندې،

اوس یې سرونه په پښو لګیږي

اوس هغه سبر قامتونه، یاره پاتې نه دي

راځه چې وژاړو،

په چیغو،

چیغو.

## د باد په کجاوه کې

ملا د باد په کجاوه کې راغی،

ملا د وریځو د اوښانو له کاروانه سره،

په ښار راننوته

او په "خورجینه" کې یې،

یو څو نا چلې

له تا ریخه غورزېدلې

"کرښې" راوړي.

ملا، کوڅه په کوڅه ګرځي له ښاریانو نه خندار را نیسي.

* * *

ملا ټوپک غاړې ته واچاوه، جګړې ته ولاړ،

ملا "غزا" کوي، جامې رنګوي،

ملا په سپینو، نا زنینو گوتو،

د خپل لنډي ټوپک ما شه راکاږي،

ملاد "کفر " په کاله باندې یرغل راوړی.

* * *

ملا په سپینه بادي اوښه باندې زین کېښوده،

ملاته گوره.

هم "غازي " شو، هم "شهید "،

هم سلامت،

بېرته تر کوره راغی.

ملا بزگر شو، په پټیو کې سکروټې کري

ملا د سرو لمبو ستری ټولوي

او د لوگیو درمنده ته له خندا شی شین دی.

* * *

ملا یاغي شو، له "محرابه " ووت

ملا د خدای خو نه په تیرو ولي،

ملا په سر د کاغذي گلونو تاج راوړی،

ملا د تخت په طلا یې مور گو لا سو نه اینبې.

* * *

ملا بې سته، بې پوښتنې د جنت په دروازه ننوت،

ملا ساقي شو ،

ملا ويشي د کو ثرو ،

پيالې ،

ملا د حورو ، له غوښنو ګلابې شونډو مچکې اخلي.

ملا په سپينه او "سپېڅلې " شمله بنګ و ترل.

* * *

ملا بارن شو.

ملا ، باد شو ،

ملا ، وورېده ،

ملا د وريځو له ړندو سترګو نه و څڅېده

او ملا سپين شو ،

ملا سور شو ،

ملا تور وخته ،

ملا د تورې شپې څادر شو ، په ښاروغو ړيده ،

او ملا سيوری شو ،

خونه پوهيږم ،

چې د څښتن ، که د شيطان سېوری

د جانان سيوری ، که د ځان سيوری.

کابل ۱۵/۳/۱۳۷۱

# د زړه په بتکده کې

ګرځم دزړه په بتکده کې مې بتـــان مـــاتـــوم
کعبه د هیلو ورانوم، سردارمـــان مـــاتـــوم
چې مې د خیال په تېشه و توږه په خپل ذهن کې
هغه د ټول عمر انځور مې د جانـــان مـــاتـــوم
ګدا خو نه یم چې خیرات به له فـلکه غـــواړم
غرور د غره اوبه کوم، خوله له اســـمان ماتوم
زړه په دریاب ور ګډېږم امیل د اوښــکو اوبم
سپېږې د هیلو ماتوم، خوله د باران مـــا تـــوم
چې یې زموږ په کرونده کې لمبـې وکـــرلـــې
بادونه ریبمه،لاسونه د تـوفـــان مـــا تـــوم
زاهده تا که میکده کې پیـــالې مـا تـې کړلې
زه له تو بو نه توبه ګار یـــمـــه، پیمان ماتـــوم.

المان

۲۰/۲/۱۹۹۹

# د اغزو په سر

خـپــل رانــه پردي شول، د پـردو په سر
ګل راته اغزي شــول، د اغــزو پــه ســر
نن څومره راتيټ شولو آســمان پــه مـا
ستوري مې ځلـيـږي، د بـڼـو پــه ســر
ژبې يې د ستـرګـو راتـهـه وويـــــل،
ژوند دی تېروه يــې د لــمـبـو پـه ســر
تېر شولو بـلـبـلـه د ګـلـونـو وخـــت
اوس دې زنده ګي شــوه د اغــزو په ســر
ګـوره د اشـنـا پـسـرلـنـی ښـايـسـت
خـانـدي يــې ګـلان، د اننـګو په ســر
خير دی که يې سترګې دروا غجنې شوې
پالمه يې مـيـنــه، د لـېـمـو پــه ســر

# سکروټې په جام کې

تــوره تــروږمـــۍ ده رڼا نه راځي
شپـه ډېـــره اوږده شوه سبا نه راځي
راغی پـــسرلـــی خـــو پسرلی نه شو
بـــڼ پـــه ویـر اخته دی بورا نه راځي
ګوره چې وعدې دې د رواغجني شوی
سره و خورې رېباره آشـــنـــا نـه راځي
هسې له توبو یې تـــوبـــه ګاره کــړم
خولې ته مې توبـــه لـــه ګنا نه راځي
خاورې د کوڅې یــــې بادوي په سر
ټول کلی مجنون شو لـــیـــلا نه راځي
جام کې مې ساقي سکروټـــي واچوه
سوی زړه ته یـلــه دوا نـــه راځـــي

آلمان مې ۱۹۹۴

کاوون توفاني

# د باد په ورانو کنډوالو کې

د باد په ورانو کنډوالو کې مې يو ګل وليده

پاڼې يې زيړې، او په شونډو کې يې

د خندا ،

رنګ،

وچ و ،

نه يې ورېمه پېژنده ،

نه يې قصه د غورېدو ياده وه.

د باد په ورانو کنډالو کې مې يو ګل وليده

د مخ کتاب يې له غمجنو افسانو نه ډک و ،

په هره پاڼه يې داغونه د خزان پاتې وو ،

او هر خپر کی يې يوازې د خزاناو رژېدو قصه وه.

* * *

د باد په ورانو کنډوالو کې يو ګل،

د يو ې مينې په نوم

د يو بې پا يه پسرلي په هيله،

دواړه منګولې لګولې د زمان په لمن،

دباد ،

په ورانو،

کنډوالو،

کې.....

المان ۲۷/۲/۲۰۰۲

# راشه پسرلیه

راشـــــه پـــســرلــیـــــه ، دغوټیو له بارا ن سره
سیل درنګ او بوی سره دمـــشکو له کاروا ن سره
راشه دغوټۍ له سترګو پریمـــینځه رانجه دخوب
راشه د زخمي زخمي غـاټولـــــو لــه درما ن سره
راشه چې جړاو شي پـــه غمیـــــو ، نښتیځلی ، باغ
راشـــه پسرلیه ، دګلونو لـــه تـــوفـــا ن ســــره
راشه چې دونو په ښـــاخـــونـــوپـــاڼـې وناخي .
باد تـــرانـــې ووایـــې ، دغـــرو مـــماڼې وناخي .

* * *

ژمی دی خفه نه شي دګلونو دغونچـو پــــه ځــای
مونږ درته په لاره زخمي زړونــه غـــوړولـــي دي
خیر که وچکالي ده نه شبنم شتـــه نــه بارا ن اوري
ستا دراتلو لاري مو په اوښکو ، پریمیـــنـځلي دي
اور مو په سر وړی ، خو ډیوې مو لګــولـــي دي
زړه د ترورمیو کې مـــو ستوري ځـــلـــولـــي دي
راشه پسرلیه ! زمـــونـــږ کلي تـــه لـــمر راوله
بیرته یې پخلا کـــه ، د عـــمـــرو مـــرور راوله .

* * *

راشه چې باغـــونـــه مـــو ساړه ژمي وهلي دي
راشه چـــې ګلـــونـــه دخــــزا ن سیلۍ زپلي دي
راشه چـــې دبـــوټـــوپـــه رګـونوکې سا وچه ده
راشه چـــې غوټیـــوپـــه سرووینو کې لمبلي دي
دښتې سوځیدلي ، چـــمنـونـه رژیـدلـــي دي
کرښې دقسمت یــــې پــــه لمـــبو راته لیکلي دي
بس دی داورونو ، دسوځـــونـــو کــتـــاب واړوه
بـــس دی پـــســرلـــیـــه ، دغـمونو کتاب واړوه .

* * *

څه دی بهار څه دی ، چې رڼا دمستۍ نه لري
سا دمستۍ نه لري ، صهبا دمستۍ نه لري
شور دمینې نه لري ،سور اور دمینې نه لري
څاڅکو دشبنموکې ځلا د مستۍ نه لري
څه دی بهار څه دی ،چې موسکا دغوټۍ وریبي
څه دی بهار څه دی ،چې خندا دمسنۍ نه لري
څه دی بهار څه دی، چې ویدې نغمې پا نه څوي
تاندې غوټۍ ویښې نه کړي ،شنې وږمې پا نه څوي .

* * *

راشه پسرلیه ، چې دلمر ګلونه وخاندي
توره شپه سبا شي ، دسحر ګلونه وخاندي
باغ په خندا سر شي ،لراو بر ګلونه وخاندي
راغ غونچې ،غونچې شي پیغامبرګلونه وخاندي
بیا دپیغلو نجونو په ټټر ګلونه وخاندي
غر په ګلو پټ شي په کمر ګلونه وخاندي
بل شي په سپیرو دښتو ، دګلو څراغونه بیا
پورته شي ،رپانده دغاټولو بیرغونه بیا

* * *

راشه په سپیرو دښتو کې سا د ژوندون وکره
راشه په سرو زړونو کې اور و جنون وکره
راشه بیا روښانه که دمینې دمزلونو لار
راشه د لیلي زړه کې وفا دمجنون وکره
راشه تږې تالې دوږمې په میبو مستې که
راشه د ماښا م په دښته ، سپین سباوون وکره
راشه پسرلیه ، باغ ته ناوې دګل راوله
ساندې ترانې که ، وزرماتی بلبل راوله .

* * *

ترکې دبګرام درنه جامونه دسوما غواړي
شورغواړي،شررغواړي ،نغمې غواړي ،نڅا غواړي

پیغلې د بخدې درنه دردونو ته دوا غواړي
بیا په نو بهار کې د بهار مسته خندا غواړي
پرېږده له قفسه ، ښایسته بلبلې والوزي
دا زخمي غوټۍ له تا نه شونډې د موسکا غواړي
زیب یې د پیکیو شه ، ګلاب د ګریوانه یې شه
سوز یې د سندرو شه ، رباب د زنګانه یې شه .

* * *

بیا به دا خزا ن ، خزا ن وختونه بهارونه شي
بیا به دا شډل ، شډل ډاګونه چمنونه شي
بیا به دا اغزي ،اغزي باغونه سره ګلونه شي
بیا به په رنګینو ګلو ، ښکلي وربلونه شي
بیا به غم وهلي ماښامونه ، سهارونه شي
بیا به د سپین غره غاړې ته ستوري امیلونه شي
بیا به د کابل لمنه ډکه په ګلونه شي
بیا به د بابا پګړۍ جړاوه په لعلونو شي.

* * *

تا که پسرلیه ، د ګلونو ګېډۍ راوړلې
تا که د وږمې په وزر تاندې غوټۍ راوړلې
تا که درښا ناوې له تورو شپو راوایسته
تا که د بارا ن د رڼو څاڅکو ډولۍ راوړلې
تا که په خاموشو ماښامونو کې شور وکړه
تا که زخمي زړونو ته د مینې پټۍ راوړلې
ته به ابدي شې ، ته به پاتې شې په زړونو کې
ته به د ژوند سا شې ، په ډاګونو ، په باغونو کې.

آلمان

۲۰/۲/۱۹۹۹

# پردی

پیژني نه مي ښـــوک یــم پـــردي دلــتــه
وایي نه سلام هم ته ســلام مـــي ښـــوک
ګني نه ځان سره ځانه لــه مـــي ښـــوک
وایي نه نام او دننګ ل سیا راته ښـوک

*   *   *

ویشلې خندا سره چا لــه مـــي نـــه
نـــه مـــي لـــه چـا سره ژړا شـــریکه
شـان یـو مینه سره نورو له مـــي نـــه
شریـکه سـا سره نورو لـه مـــي نـــه

*   *   *

نـه پا  شـوي جلا وني لـه  لـــكـــه
خـیـــستي سرا پـــه سیلـــې زمـاني د
غه مر وهلي تـــوفان د شـــپي لـــكه
اخیستي وزر مي ســـړو بـــادونـــو

*   *   *

قیصه تښتیدلي ده یـــا لـــه لـــكه
شم نه تخنولی ذهـــن دچـــا نـــور

هیله ورکه کي شپـــو په دوخت لکه

شم نه تـــودولي زړونه دچا نـــور

*    *    *

سربـــاز شوي مات کي سوبه په لکه

ستـــړي جهــانه لـه ستـــړي، ځانه له

مـــین مـــه نــاکـــا کي مینه په لکه

ستړي نه پیـــما له ستړي، هوډه لکه

*    *    *

چـــت او نه اسما تر سروو مي هلته

ګنې مـــي اتخور خیر یم، پردي دلته

خاوره خپله په ومـه اتـــل هـــلـــته

ګنې مـــي تور یمه، ویاړه بي دلتـــه

*    *    *

راغلم بارنـــه له سکروټو دســـــرو

ته ر ښا لیو ړ د نو تـــومـــتـــو د

راوتښتېـــدم نه وریځو تـــورو له

ته ښار سپلیـــو د او باد د راغـــلم

*    *    *

ترې میني د ویـــنـه شرقي زمـــــا

کي قــدم هر په ده کــرکـــه دلته خو

لیـــوال خبري پـــستي یـــوي د زه

کي چـــم په زما دي تیرړي خودلته

*　　*　　*

جنت په څــــه ستایې یې دوزخي ته

کوي څه چمـــن ته یې صحرایې، ته

یئ ورړ ېدلـــو ز دسو لرګی وچ تـــه

کوي؟ څـه ګلشن څه، باغ په یې ستا

*　　*　　*

بولي مي وحشي شم تي پا لیرې که

ټولوي ځان رانه شـم ورنژدي کـه

کوي کرکه غـاړمه و میـــنه کـه

نړوي دنیا وکوم، کـــه کـــر کــــه

*　　*　　*

راته دي غزي ا یې څانګي ټو بو د

که ۀ پیغوره له یې خنـــدا دګــــل

څـــاخي زهر ئي نـه ونـــو ورړو له

که ۀ اوره سره له یې اروا ځوانـــه

*　　*　　*

یم تی بـــو غرو جـــګو د وطن د زه

کیږم شین نه کي چـــمن پردي دلته

ده ښخه ریښه مـــي کي خاته لمر په

کیږم شین نه کي ګلشن غربي دلته

*     *     *

پیژني نه مي ځوک یم، پردي دلته

دي هلته پت زما او عـــزت زمـــا

ځاییږم نه کي جـنت پـــردي دلته

دي هلته جـنت زمـــا دوزخ، زما

آلمان اکتوبر ۱۹۹۴

# د جانان سترګو کې

بیا د ارمان غوټې رژیږي ، د جـانـان سترګـــو کې

ږلۍ د مني راوریږي، د جـانان ســتــرګـــو کې

د شپې سریزه ده تور تم په بـــربـــدلـــو ښکـــاري

د تور ماښام ستوري ځلیږي د جانان ستـــرګو کـــې

لمر شهید شوی که افق زموږ په وینو ســـور شــــو

که سره غاټول دي چې ټوکیږي د جانان سترګو کـــې

د جانان سترګو کې زما د ژوند بیړۍ ډوبــه شــــوه

یا غې توفان دی چې بهیږي د جانان سترګـــو کـــې

شو ر د ځوانۍ دی که لذت د یوې نـــوې ګـــنــــاه

که د تاک لور لوخه نڅیږي د جانان ســـتــرګـــو کې

لکه چې بیا په محــتسبــه بـــلا واوښـــتـــــمــه

سپېره قسمت راته ګوا ښیـــږي د جانـان سترګو کې

"کاوونه" بیا دې د زړګي جونـــګړې اورا خیســـتی

که د هوس لمبې بلیږي د جانـــان ستـــرګو کــــــې

آلمان

۱۶/۹/۱۹۹۶

# اندېښنه

انــدېــښنـــه د يوې ونې په سر نه ده
انــدېښنه، د يـــوه بــاغ د رژېدو ده
که يوه چيــنــه ړنده شي باک يې نشته
د تمام کلـــي ويـــالـــه په وچېدو ده

# د آشنا پل

د یار په مخ زلفې خورې خو نـــه دي
لار اختلې تورې شـــپـــې خو نــه دي

سر ټیټوم د آشنـــا پـــل ښـــکلـــوم
زاهده ستا تشې سجدې خونـــه دي

زه به نو ولې ترې پر هېز کـــومـــه؟
پیالې د میو ودي، توبې خو نــه دي

شیخه، ستنې دي که ناولې ګوتـــې
د ښکلو زلفې دي تسبې خو نـــه دي

زړګیه رون به دې کړي دود به نه شي
د مخ شغلې یې دي، لمبې خو نه دي

راځه چې بلې کړو د میوو ډیـــــوي
ساقي !لا ورانې میکدې خو نــه دي

کا وونه تمه د وفا ترې مـــه کـــړه
مغربي نجونې پښتنې خو نـــه دي

آلمان

سپتمبر / ۱۹۹۷

# مړې ډېوې

ساقي دورغجنې دې وعدې شوې، ډېوې بلې نـه سوې
په مېکده کې ډېوې مړې شوې، ډېوې بـلې نــه شوې

خمونه تش، پيالې نـسکورې، مېــــکدې ويـــجاړې
بيا د زاړه زاهد دورې شوې، ډېوې بلې نـــه شـــوې

سپو ږمۍ په وربځو کې ويده، ستورې دودونو کې پټ
د تورې شپې زلفې خورې شوې، ډېوې بلې نه شـــوې

تشه بيد ياده نه ليلا نه يې کېــږدۍ شــتــه پــکې
مجنونه !خاورې دې اسرې شــوې، ډېوې بلې نه شوې

يوه سپرغۍ وه ځلېـــدله د ايـــرو پـــه مـــنـځ کې
اوس هرې خواته سرې لمبې شوې، ډېوې بلې نه شوې

باغ کې چوپتيا ده، ونې زانګې د ماتم پـــه خـــېـو
د ژمي شپې خومره اوږدې شـوې، ډېوې بلې نه شوې

چا يې په ياد چېرته نه شـمه او نـــه ګل کېښــــوده
د سرو غاټولو مرۍ پرې، ډېوې بـلې نـــه شـــوې

د جانان غمه د زړه کور راتــه روښـــانـــه که تــه
بيا تور ما ښام، تورې تيارې شوې، ډېوې بلې نه شوې

آلمان ۲۳/۹/۱۹۹۶

# له دېوالونو سره

هره شپه له خړو خړو دېوالونو سره

د زړه خواله کومه

* * *

هر سبا یې چې مې له خوبه سترګې و غړېږي،

د خړو و سپینو تړلې دروازه وینمه

او د کوټې د دیواله له داره زوړنده کو چنۍ کړکۍ

چې د هوا غلی تصویر یې له زاړه او سو لیدلي قابه ګوري راته،

او دیوالونه، بس یوازې دېوالونه، چې لا سونه یې ورکړي یو له بله سره

او ورو په ورو رانژدې کېږم ماته

کله چې ساه با سم،

لکه څپېړه مې په مخ لګېږي.

خو زه لګیا یم هر ورځ له دیوالونو سره،

د زړه خواله کومه

* * *

چې د ما ښام لښکرې راشي خپلې تورې جنډې ،

د دیوالونو په یر ور پوي،

د لمر ګزمه ستړې ستو ما نه بیا له دنګو دنګو غرونو واوړي

زه د ځلورو دیوالونو په سارہ تا بوت کې وغزیږم،

او د خوبونوښاپیرۍ مې، په پڼتو وزرونو،

ځان سره بوزي کومې لیرې نا آشنا سیمې ته،

چې نه کړکۍ، نه دیوالونه، نه دو سپنو تړلې دروازې وي پکې

نه څوک هوالکه تصویر په قاب کې بنده ساتي.

زه لکه ښاده او آزاده مرغۍ،

هر خوا والوزمه.

هر خوا وګرځمه

د هرې ونې په تنکیو پاڼو زړه و موښم

د هر ګلپوټې د غوټیو خوږې شونډې ښکل کړم.

او د هر چا غوږ کې د مینې ترانه ووایم.

کله چې ستړی شم راوګرځمه،

او د خپل زړه د نیا ته ننوزم

بیا له ختیځه تر لویدیځه، له شماله تر سهیله پورې،

بیرته هماغه د یوالونهاو د وسپنو تړلې دروازې ووینم

او د کوټې د دیواله له داره زړوندې کوچنۍ کړکۍ

چې ګلوزره وږمې،

لکه د مړو تصویرونه، په زاړه او سو لېدلي قاب کې بندې ساتي

* * *

زه له دې خړو دېوالو سترې يم،

زه له تړلو وسپنېزو دروازو سترې يم،

زه لخ دې زوړندو کړکيو ،

له زړو قابو نو

کر که لرم.

کابل پلچرخي زندان

۲۵/۸/۱۳۶۷

# دوینو جام

په آسمانه ، بیا دې خه لوبه آغاز کړه ؟

بیا دې کومه غمپروره نغمه ساز کړه

ټول وطن مې د عمرونو غمکده شو

زړه دې یخ که ، ورته خانده ، ورته ناز کړه

* * *

دآسمان په لاس کې بیا دوینو جام دی

بیا یې کړی ، قربانۍ ته زما لام دی

ټولوطن راته د سروو وینو دریاب شو

ورځ مې شپه ده ، هر سهار راته ماښام دی.

* * *

دوحشت په اور کې سوزي ، ایرې کیږي

دوطن هستي مې ټوله نابو دیږي

دښمنانو هسې اور راته کړلی

چې یو ریبم سل یې نور رازرغونیږي.

* * *

دوحشي ستم دوران دی په وطن کې

هر قاتل اوس قهرمان دی په وطن کې

دوطن لمنه ســــــره ده پــــه ســــرو ویــنــــو
جــــوړ د سرو وینــــو بــــاران دی پــــه وطـــن کــــې

* * *

ســرې لمبې دي ، دبـابـا وطـــن مــــې ســــوزي
زړه مې سوزي ، ځـان مې سوزي تـــن مې ســـــوزي
په ګلونـــو مـــې ســکــــروټـــــې راوريــــږي
باغ مې سوزي ، ښايســـته چــمن مــــې ســـوزي

* * *

هر يو « دوست » تــه مې چې لا س ورکه دښمن شو
اهورا مې چې باله ، اوس اهــــريـــمــن شــــو
هر يــــو راغې ، زه يې چور کړم ، زه يـــې بــور کړم
هريو لاړه قربــانـــي ، زمــــا وطــــن شــــو .

* * *

وطـــن وران شو ، ملت چور شو ، ولس خوار شـــــو
څوک په يو ه او څوک په بل نــــامـــه ازار شـــــو
نه مــو "کــور" شو ، نه" کالي "شول ،نه " ډوډۍ " شوه
څه چې پـاتـــې له نـــيکو وو ، تـــارو مــــار شــــو

* * *

سهار وینې رابهیږي ، ما ښام وینې
صراحي نه وینې څاڅي له جام وینې
څه دوینو زمانه شوه لویه خدایه
اغاز وینې راته ښکاري ، انجام وینې.

* * *

تا په کومه ګناه وژني ، وطنداره ؟
قرباني یې بیا دکوم غا صب لپاره ؟
ستا له ورانو کنډوالو نه نور څه غواړي ؟
چې لاس نه اخلي دښمن له دې ازاره.

* * *

دوطن سپین سرې مور شوله سرتوره
داسمان دناکردو بهیر ته ګوره
اوس د وینو په دریاب کې ده ولاړه
چې پرون وه په سرو ګلو کې سمسوره

* * *

چې دګلو دانې وکرم ، اغزي شي
هر ګلرخ ته چې زړه ورکړم بازاري شي
هر "امام" پسی چې زه اقتدا وکړم

دمسجـــد لـــه کونجه پورته شي ، عاصـــي شـــي

* * *

چاپـــه یو او چا په بل نامه خـــــراب کــــړي

چا ایــــرې کړي ، چا په سرو لمبو کـباب کـــړي

نـــه پو هیږم څــه ګـنــاه لـــرې وطـــنـــه !

چـــې داهسې یې دســـرو ویـــنـــو دریـاب کړي.

* * *

دمـــلـــت په اوږو سپور شـــي محـــتـــرم شـــي

هم کـــعبه شي ، هم ساقي شي ، هـــم صـنم شـي

هـم یـــې وژني هـــم پـــه قـبـــر ورتـــه ژاړي

هـم قـــاتـــل شـــي ، هم قاضـي یې دستـم شـــي.

* * *

لـــویـــه خـــدایـــه تـــه دا تـــوره شپه رڼا کـــړي

ټول افغان بیرتـه په خپــــل وطـــن بســـیـــا کـــړي

شـــیطـــاني تـــروږمۍ وولۍ پـــه ستـــورو

ورنـــه خلاصه دافـغـــان دزړه دنـــیـا کـــړي.

آلمان

جون ۱۹۹۴

*د «زه کابل یم » دکتاب لیکوال ، نباغلي م.ح. حسام ته :*

# یو لیک ، یو پیغام

یـــه دوطن دارما نـــونـــو یـــاره

یـــه دولس دفریـادونـــو یـــاره

زما دغـــم اودقـــلـــم شـــریـــکه

یـــه دکابل دماتمـــونـــو یـــاره

* * *

تامـــې دزړه په سوزیدلې دښـــتـــه

بیا دیادونو اغـــزي وتـــو کـــول

تا مې دذهن رژیدلي بـــاغ کـــې

بیا دغـــمـــونـــو ګلان وغـــوړول

* * *

تامې د سترګو د ا ســـمـان لمنې

بیا دماتم په وریځـــو ولـــړلـــې

تامې بې وسه بې فریاده اښـــکې

بیا دارمان په مزار وشیـــنـدلـــې

* * *

تا مې دذهن وزر ماتی مرغـــــــه
بیا دکابل دکنډوالو میلـــمـه که
تامې دژوند دامیدونو قـــاصـــد
بیا دوطن دهدیرو مـــیـلمـــه که.

* * *

لاړم دخیال په وزرو والوتــمـــه
په سوزیدلي کابل وګر ځـیـــدم
دورکو هیلو دلـټون په تـــمـــه
په نړیدلي کابل وګـــرځـیـدم.

* * *

پیدا مې نه که هغه ښکلې کابـــل
دافغانانو نـــازولـــی کابـــــل
زما کابل ، زما منلې کـــابـــل
ښکلې کابل ، دګلو ځلې کابـــل

* * *

دښـــایسته دزړه په ســرمـــــې
دسپیرو خاورو ډیری لـیـدلـــې

په هر قدم او هره لويشته کې مې
د سوو هيلو غوټۍ ولېدلې.

* * *

هغه دمينې په شور مسته سيمه
لکه خاموشه هديره ښکارېږي
داکاسي او د نسترنو باغچه
له ګلو تشه ده ، سپيره ښکارېږي

* * *

چا يې هوس د سوزېدلو کاوه
چا يې ارمان د نړېدلو درلود
چا يې په زړه يو زر زخمونه غوښتل ( ١ )
چا يې امېد د پرزېدلو درلود.

* * *

چا يې په څېرې ګرېوان اوربوري که
چا يې لمن چا يې لونګۍ پټه کړه
چا يې تاريخ ترښه ځولۍ کې يووړ
چا يې د هيلو ناوکۍ پټه کړه

* * *

چا يې ويا ړونو ته کتلای نه شـــــول
چا ته يې جـــګ سر د منـــــلونـــه وه
څوک يې ړانـــده و عـــظمتونو پسې
چا ته يې برم دلـــــيـــدلو نـــــه وه.

* * *

چا يې پګړۍ له سره کـــوز کـــړلـــه
چا پرې لمبې د انتقام بـلې کـــــړې
چا يې ګريوان ريښې ريښې که ورته
چا ورته شمې د انجام بـلې کـــــړې

* * *

نـــه يې سهار دی د شـغلو ملګـری
نه ما ښام، رنګين رنګين ښکاريږي
نه يې سپوږمۍ دلمر په مينـه مستـه
نه څو يې ستوري ګلورين ښکاريږي.

* * *

نه يې باغونه په ګلابـــو سينګار
نه د ښتونه په غاټولـــو ښـــکلي
نه يې ماهيو کې پرتـــم پـاتـې دی

نه جونګړې چا په ننګ پـــالـلي

* * *

په وینو سره ښـکاري لمـــنه دښـار
پر هر پر هــر یې مړه نـنګــونه ژاړي
له زخــمي زړه نه یې څڅیږي وینــې
ویرژلې ســایې تاریخــونـــه ژاړي

* * *

د شنه اسمان مخ یې پـه وریځو ککړ
شپه یې بهیږي په کو څو کـو څو کې
هر لور اوریده دې د ستم لا ســـــونه
مرګ یې نخښږي په کو څه کو څه کې

* * *

په هر څپک خـاوره یې وینې پر تې
پــه هــر قـــدم یـې رژیدلي ګلان
په هر لښتـه یې زمو للي غوټۍ
پـه هــر ه څانګه سو زېدلي ګلان

* * *

ا ســـما یې، دغه زخمي پـهلوان

نور درزمونـــو افسانې نه وايې

دغه د تيــرو پــر تـمونو راوي

د سترو سـو بو ترانــې نه وايې

* * *

نور يې« مهراب» او« رودابه» هېره ده

نور يې د « زال» زاړه رازونـــه نــشتــه

اوس يې په ذهن کې« شغاد» پاتــې دی

نور يې« رستم » ، « رستم» يادونه نشته

* * *

اوس پـــکې نوم د « کا که» ګانـــو نشته

اوس پـــکې مړه دي د مـــرۍ رسمـــونه

اوس پـــکې ملتې دي سپيڅلې تـــورې

اوی پـــکې ورک دي د دستار ســرونـــه

* * *

نور يې «اکبر» ، « اکبر» غيرت ويده دی ( ۲ )

نور يـــــې « امان، امان » ننګونه نشته ( ۳ )

نور يې مشکي، مشکي شملې ټيټې دي ( ۴ )

نور يې طـــرزي، طـــرزي فکرونه نشته ( ۵ )

* * *

حسامه، تا خو د کابل په لو تړو

د اوښکو ډېرې ډېوې بلې کړلې

تا د بې ګوره شهیدانو په یاد

د خلکو هېرې شمې بلې کړلې

* * *

تا د قلم په هنر منده ژبه

وطن، وطن سندرې وویلې

تا د سرو وینو د دریاب په غاړه

د مرغلرو مرۍ وپېیلې

* * *

تا د قدرت د لیونو له مخه

د دین سپېڅلی نقاب وغورزاوه

تا د منکرو زاهدانو جرم

په خپلو چیغو چیغو ولړزاوه

* * *

ته دریا خر قه پو شانو پېې

د ننګ پېلوځې په لاس وګرځېدې

ته له دروغجنو اتلانو سره
د خپل قلم په توره و جنگېدې

* * *

دا هورا په نوم راغلي یاران
گوره زامن د اهریمن وختل
د پرښتو جامه کې پټ شیطانان
وحشي سر تېري دد ښمن وختل

* * *

د شپې برېښې د رڼا د ښمنان
دزرو غله دي هنر څه پېژني
داله کتاب او له قلمه پر دي
د علم او پوهې سنگر څه پېژني

* * *

له غلو نه تمه د انصاف مه کوه
له قصابانو قضاوت مه غواړه
دبې عزتو، عزت نه خو ښېږي
له بې غیرتو نه غیرت مه غواړه

دا د سرو وینو د ثروت سوداګر
د محبت په ژبه ، نه پوهیږي
دا د مرګونو د ښامار قاصدان
د ژوندانه په معنا څه پوهیږي

* * *

دا د پرون د معرکې اتلان
د خپلو خلکو قاتلان وختل
داد وطن دازادۍ جنګیالي
خپله د نور و غلامان و ختل

* * *

دا د بربندو پرښتو مینا ن
د دنیا یې جنت خوبونه ویني
داله هیندارو نه بېزاره شیخان
تورو کو دړو کې مخونه ویني

* * *

راځه چې لوڅې کړو ناولې څېرې
راځه رسوا کړو درواغجن اتلان
دا د ګناه او د ثواب مالکان

دا د جنت او د دوزخ واکداران

* * *

راځه په چیغو کې لمبې وکړو

راځه تاوده کړو یخ وهلي زړونه

راځه د هیلو غوټۍ و نازوو

راځه چې ایل کړو خزانې بادونه

* * *

راځه وږمه شو باغ په باغ وګرځو

په سپېرو لښتو کې غونچې وکړو

راځه د یوال د سکوت و نړوو

په وچو شونډو ترانې وکړو

* * *

راځه د تور ماښام په توره دړه

ښکلی تصویر د سباوون کاږو

راځه د مرګ د هیولا په تندي

ځلانده لیکه د ژوندون و کاږو

* * *

باور مې نه شي چې د ورېځو مور به

د شنه اسمان په مخ خپره پاتې شي
باور مې نه شي چې دا تورشپه به
د لمر په کلي کې ديره پاتې شي

* * *

دا د سرکښو تو فانونو وطن
سر د ستم مخې ته نه ټيټوي
دا د رزمونو په بټيو کې پوخ
د بې ننګيو زنځيرو نه قبلوي

* * *

بيا به را پا څيږي دا ستړی ولس
بيا به راويښ شي دا ويده ننګونه
بيا به پخلا شي مرور اشنا يان
بيا به تازه شي پخواني هوډونه

* * *

بيا به نو توري تا لا نګري څېرې
په تکو سپينو جامو نه پټېږي
بيا به لو ټماري ستمګري ډلې
د عدالت په ګدۍ نه برېږي

بیا بـــــه د لــمـر ګلـــونـــه و غوړیږي

بیا بـــه ســحـــر پــه ځـلیـدو لور اشي

شپـــه بـــه د شپـــې کلـي ته کډه وکړي

بیـــا بـــه سپـیـدې پــه بربڼدلوراشي

* * *

بـــیـــا بـــه مـــو تـــاج شي د غنمو وږی

بیـــا بـــه سپـــرلـــی شي د بابا په وطن

بیـــا بـــــه جـــا رېـــږو یـــو له بله ځنې

بـــیـــا بـــه را پلنه شي رڼا پـــــه وطـــن

* * *

بـــیـــا بـــه کابـــل شي د ننګو نو کا بل

د تـــلـــژونـــدیو پـــر تـــمـــونـــو کا بل

د ټـــول افـــغـــان د امـــیـدونو کابل

د بـــــریـــالـــیـــو ارمـــا نونو کابل

۱ جنرال اختر عبد الرحمان له ۱۹۷۹ څخه تر ۱۹۸۷ پورې د پاکستان د استخبارتي سازمان ISI رئسو ، چې لوی ارمان یې د کابل سوزول او ویجاړول و او د ژرګو نو زخمونو ...... تر نامه لاندې د جګړې نقشه یې په سر کې درلو ده.

۲. وزیر مخمد اکبر خان

۳. اعلیخضرت امان الله خان

# تللې شيبې

تا ته يا دېرې هغه تللې شېبې ؟

هغه د ګلو غوندې،

ښکلې، رنګينې، نازولې شېبې،

چې دې د ستر ګو د اسمان په تورو تورو شپوکې

لکه د مينې د رازونو ستورى و ځلېدم،

او هر شپه دې له ما ښامه تر سهار ه پورې

د خپلو ستر ګو د کتو په ژبه،

ما ته د « مينې »

د « باور »

او د « ارمان »

خوږې قصې کولې.

۲

تاته يادېږي هغه تير، هغه تر خه هغه اغزن وختونه؟

هغه په تورو وريځو بار هغه دود جن و ختونه،

چې دې د ستر ګو د اسمان په تکو تورو شپوکې،

« مينه » کو چې،

« باور » پردى شو ،

د ارمان شغلې خامو شې شو لې،

زه دې د ستر ګو له اسمانه، د باران د یوه څاڅکي غوندې و څڅېدم

المان/ جنوري ۱۹۹۳

د باد په کنډوالو کې

کاوون توفاني

# کابل ته

درنـــه لـوګـی شم، ګرانه کابـــله
زمـــوږ د نـجـونـو، د پېکي ګلـــه
وجود مـــې سوزي، زړه مې رپــېـــږي
چـــې درتـــه ســـرکړم د غـــم بدلــه

* * *

ماتـــم څـــځېـــږي، ستا له څيرې نه
خندا دې څـه شـــوه، سرور دې څه شو
مستي دې څه شوه، هستي دې څه شوه
غېرت دې چېرتــــــه، غرور دې څه شو
ماښام ماښام يې، سهـــار دې نه شته
په ژمي پروت يې، بهـــار دې نه شته
لمر د پرېـــوتی، سپـــوږمۍ دې تللې
د رڼو ســتورو، سينـــګار دې نه شته

* * *

د ګلـــو ښـــاره، د ښـــــکلو ښاره
ښـــکلي دې لاړل، ګلان دې وســـول
فضـــا دې ډکــــه لــــه شنو دودونو

ونـــي دې وســـوې، مرغان دی وسول

* * *

په سپینه ږیره دې اوښکی څـاڅـــــي

له زخمي زړه دې وینې بهـــــېږي

په شنه لمن دې غـــاټـــول د وینو

رازرغونـــېـــږي او راغـــوړېـــږي

* * *

په سر دروې، سکـــروټـــــې ووري

په لاله زار دې، خـزان پـــرېـوتـــی

ونـــې لــغـــړې، ګلـــونـــه مـړاوي

پـــه شنـــو باغو دې توفان پرېوتلی.

* * *

د لمر پـــه بـــام دې، اخـېر د وربځو

شینکــــي اســمان دې پټ په دودونو

غبـــږه دې ډکــــه له شــهیدانــــو

خـــلـــک دې ستــــړي له ماتمونو

* * *

خندا دې چور کړه، وحشي بـادونـه

غرور دې مات که، بې غیــــرتـــلـنو

هـــستــــي دې یـــــوړه داړه ما رانـو

غوټۍ دې لوټ کړې تورو کارغـــانو

* * *

زه درنــــه لري ، پــردي وطـــن کې

په یـــاد دې سوزم ، په یـاد دې ژاړم

هر شــــیـــبــه دې ، له غمه مـرمــــه

په غشق دې پــــایـم ، په نوم د ویاړم

* * *

د ګلـــو ښـــاره، د ښکلو ښـــــاره

زخمي کابله، ورانــــــه کابـــــلـــه

سوی کــــــابــــله، ویـجاړ کابله

ښکلــــی کابــــلـــه، ګرانه کابلـه

المان

۱۹۹۳/۵/۲۰

د افغانستان د نومیالي لیکوال او څیړونکي، اوراښاد محمد صدیق روهي په ویر کي

# د روه ملیار.

هغه شنه اسمان ځـلانــــده ستـوری

هغه په پټه خوله ویانـــــده ســتوری

هغه د ورکو کاروانــو نـــو هـــادي

هغه د نور د سین څپانــده ستـــوری

* * *

هغه پـــه سپینو مـــرغــــلرو مین

هغه د میـــنې د دریـــاب مـــاڼـــــو

هغه د حـــســن د تصویــــر انځـور کړه

هغه غړ او د کـــتــــــاب مـــاڼــو

* * *

هغه د روه د ګــــلــــزارونـــو ملیار

هغه د حـسن د بـــــاغـونـــو ملیار

هغه د دښـــتـــــو د ګلـــونـو ملیار

هغه د پـــاڼـــو د رنګـــونـــو ملیار

* * *

ستوری و ، ستوری شو له ستورو سره

لاړو د تلليو په قطـــار كـښېناست
ښكلا به چېرته خپل تصوير و ګوري؟
په ايينه باندې غبــار كـښېــناست

* * *

د شپو ځنګل يې په سكروټو وويشت
د يخ په دښته كې يــې اور وكـــړه
زړونه يې مست كـــړل د رڼا په ميوو
په ساړه بزم كــې يــې شـــور وكړه

* * *

ځان يې د شمې غوندې وســوزاوه
تياره محفل ته يې رڼــــا وركـــړه
خاموشو تورو ته يـــې غـــږ وبښه
مړو قلمونه تــــه يــې ســـا وركړه

* * *

د وچكالـــۍ په دغه شنډ فصل كې
ګلونـــه پاتـــې شــــول مـــليار لاړو
څوك به پالنـــه د غوټيو وكـــــړي؟
وربېمه پرديسه شـــوه، بــــهار لاړو.

* * *

څوک به ساقي شي په دې توره شپه کې

څوک به جامونه د رڼا وويشي

څوک به د ستور د ميخانې وپالې

څوک به مستانو ته صهبا وويشي؟

* * *

څوک به د خيال په هنر مندو ګوتو

له تورو تيرو نه تصوير جوړ کړي

څوک به له زيړو رژيدلو پاڼو

د رنګينه ګلو بهير جوړ کړي؟

* * *

ژاړي د روه د سردرو ښا پيرۍ

تشو پيکيو ته، ګلونه غواړي

له رژيدلي، بې مليار باغه

د بلبلانو اوازونه، غواړي

* * *

هغه د مينې د ښکلا انځور ګر

لاړو د تلليو په قطار کښيناست

ښکلا به چېرته خپل تصویر وګـــوري؟

په اینه باندې غبار کـښیـــناســـت

المان

۱۹۹۶ جون

# د مابنامونو په دار

وس راباندې وکوه، ګیله مې په خـــوله نه راځي

دود مې که اسمانه خو شکوه مې په خوله نه راځي

مینې مې د ژبې په سر نـــوم د یـــار کـــرلی دی

څه وکړم زاهده چې توبه مې په خوله نـــه راځي

سر به کله شمـــه د لـمبـو پـــه بـیـه ورکړمه

پت به د عشق و ساتم، پلمه مې په خوله نه راځي

هسې یې د سپیني خولې په تمه تومتـــې شومه

مست یې په کتویمه، بوسه مې په خوله نه راځي

ما یې د تسبو په لړکې کفر د ابلـــیس ولـــید

موړ یې سجدو نه یم، زه د سر د ټیټـېـدو نه یم

وخته !د تسلیم توره قصه مې په خوله نه راځي

کاوون توفاني

د باد په کنډوالوکې

هر توري زخمي دی، هر غزل د وینـــو رنګ لري

هیري مې سندرې شوي، تېپه مې په خوله نه راځي

شیخه درواغجنه د جنـــت د پـــرښـــتـــو غـــله

تا چې دلته و کول، هغه مـــې په خوله نه راځي

ته خو به مې غږ د ماښامونو پـــه دار پورته کړې

زه به چیغه چیغه شم، روژه مې په خوله نه راځي

کابل

د غبرګولي ۱۸ ۱۳۷۱

# د خزان تصویر

بیـــا خـــزان پـــه ګلو راغی

بیا ماتم نیـــسي بـــاغونه

بیا چمن په ویـــر اختـــه دی

بیا رژېږي ســـره ګلونـــه

* * *

بیـــا د وریځو اوښان ګرځي

د آســـمان په کرونـــده کي

بـــیا د بـــاد اســـونه ځغلي

د افق په شنه باغـچـــه کي.

* * *

د خـزان نقاش تـــه ګوريُ

رســـمـــوي تـــصوير د مني

د چمن په ښکلې پـــا ڼـــه

خپروي تصـــویـــر ړ مـــني.

* * *

ځنګله خـړه چـــوپتیا کې

د سفر سرود غـــــړیـــږي

د غمجن ماښام پــه شونډه

د مـــاتـــم غــزل چلېږي.

* * *

مـــرغـــۍ الــوزي له ونو

د تـــودو سيـــمو په لوري

تـــرانـــې د مينې وايـــي

خپروي د ژونـــدون توري

* * *

طبيعت څومره رنګين دی

دنيا څومره ښايستـــه ده

ژوندون راز دی د رازونـــو

د فــصـــلـــو نو سلسله ده

* * *

کلـــه پـــاڼـــې رژېدلي

کله موج وي د ګـــلـــونـــو

کله ټوله دنـــيـــا خـــړه

کله شور وي د رنــګونــو.

آلمان ۹ / ۱۰ ۱۹۹۵

# زرغونې هیلې

زما وطنــه یـــه زما د شنو یــادونــو باغه
زما د سترو ارمــانـونــو د دمـــي مـنـزله
زما جنــت، زمـــا دوزخ، زما ثـواب او ګناه
زما سپـرلی، زما خــــزان ، زما د مسنې ګله

* * *

و مې لیدل چې په غمجن زړګــي دې اور ولګېد
ومي لیدل چې له سیني نه دي لمبې پورته شوي
ومي لیدل چې د سکروټو په توفان لاهو شــوي
ومی لیدل چې له لمنې دې ایرې پورته شـــوی

* * *

ومي لیدل چې د اسمـان لمـنـــه ډکه شـــوله
ستا د سرو ګلو پـــه رنـګیــــنو رژېدلو پاڼو
ومې لېدل چې د افق شونډې ګلګونـــې شولې
ستا د غوټیو په نیمزالو نښتېځلو پـــاڼـــو

* * *

ومې لیدل چې خوشحــالیو درنه کــډه وکړه

ومی لیدل چی درکـــې وچ شول د خندا ګلونه

ومی لیدل چـــی د خـــزان بـــادونو ورژول

هم د شینکیو سر درو هـــم د بـیـــد یا ګلونه

* * *

ومی لیدل چي په باغونو دې لمبې پورې شوی

ومی لیدل په چمنونو دې اورونه کـړ شـــول

ومې لیدل چي په بلبلو دې مـــاتـــم ولګید

ومی لیدل چي ګلبوټو دې لـــوونـــه ګړ شول

* * *

ومی لیدلچې توره شپـــه دربـاندې بره شـ-وله

ومی لیدل چې وربځو هیر که سپین سبا درځـــني

ومی لیدل چي سپوږمۍ پریوته او ستوري توي شول

ومي لیدل چـــې مـــروره شـــوه رڼـــا درځني

* * *

خو یه وطنه یه زمـــا د شنو یـــادونـــو بـــاغه

تل به سبلې، تل به د ژمي تاړاکـــونه، نـــه وي

وربځې به ورکې شـــي، د لـمـــر لونبې به ونځېږي

تل به دا توره تروږمۍ، دا ماښـــامـــونه، نه وي

* * *

شپه لا که هر څومره اوږده هم شي تلپاتــې نــه ده

وریځې که هر څو مره تیارې وي جاودانې نــه وي

د ساړه ژمي یخ وهــلې او ســـړې سېـــلۍ بـــه

تل د باغونو پـــه رګـــونـــو کې روانې نه وي

* * *

د پسرلي نـــاوي بـــه وسپـــړي د زلفو ولونه

په شــــنه لمنـــه بـــه دې وتومبي غمي د ګلو

په سرو غـــــاټولو په رنګینې شي شګنې تالې

په چمنونو کې بـــه جــــوړه شي سیالي د ګلو

* * *

باران به پاڅوي له خوبه د ډاګـــونـــو بـــو ټـــي

ورږمـــه به بیا سوو، سپېرو لښتو ته سا ورکړي

شبنم بـــه پر ښمینځې په مینه د غوټیو سترګې

لمر بـــه د ګلـــو انـــنـــګیـــو ته ځلا ورکړي

* * *

په خړو دښتو به روان شي د رنګـــونو بـــهـــیر

په سپېرو بوټو به رابره شــــي دګل سنــــدره

په سرو غو ټيو به جړاوي شــــي د ونو غاړې

په باغ او راغ به راخپره شي د بلبــل سندره

* * *

په تورو وربځو کې به تم شي د سکروټو باران

د شپې په څنو کې به وچ شی د لمبــو ګلونه

د تر وږمې سينه به ځيري شی د لمر پــه توره

د شفق باغ کې به سمسور شی د سبېدو ګلونه

* * *

بيا به ګلان په وربل کېږدي کليوالې نجونې

بيا به باغونو ته ستنې شي مسافرې مرغۍ

بيا به په غرونو کې غرځې دمشکو ساه وکري

بيا به په ځالو راخورې شې مهاجرې مرغۍ

* * *

بيا به د ګلو پـــــه سين و لامبي شڼلې دښتې

بيا به خړوب شی په شنبليو دا سپېره ډاګونه

بيا به د باغ په زړه کــې وټو کي زرغونې هيلې

بيا به د تيږو ذهـــن ونـــازوی سره يادونه

آلمان دسمبر ۱۹۹۶

# لاري

زوی مې زما په ژبه نه پوهېږي،

زه مې له پلار سره، يوه مسجد کې لمونځ نه کوم،

پلار مې په خپله لاره ځي او زه په خپله لاره،

زوی مې زموږ لارې،

منسوخې،

کړې لارې بولي.

او د خپل ځان لپاره بله نوې لار لټوي.

زموږ د ژوند دود او د ستور داسې دی،

موږ د لارو د بدلون په هنر نه پوهېږو

خو د ځانونو بد لولو سره روږدي نه يو ،

ځکه خو ټول عمر

په لاره کې يو ،

منزل ته،

نه رسېږو.

آلمان دسمبر۱۹۹۴

# يه غمه کوردې ودان

يه غمه، کوردې ودان،

چې دې د ژوند پدې سره دښته کې

پدې اغزنه، ناځرګنده لاره،

يوازې،

پرې نښودم.

يه غمه،

کوردې،

ودان.

زه لکه ستړی مسافر ، ژوندون مې بار په اوږو ،

پدې اغزنه،

ناځرګنده،

لاره،

په شپو او ورځو ،

ځم،

روان يمه،

مزلونه وهم.

ته،

لکه خوږ او وفادار،

ملګری،

تل راسره يې او قدم په قدم،

زما د سترګو ژوند ،

شپېږ شماري.

او د ژوندون پدې اغزنه، ناځرګنده لاره،

ما سره د رومې او ستل راکوې.

غمه،

يه غمه،

وفاداره

غمه.

زما د سترګو ژوندون،

ياره،

غمه.

آلمان ۱۹۹۵/۱۱/۳

د باد په کنډوالوکې

کاوون توفاني

# تشې پيني

زړه نــــه مــې ځــاځي، درپسې وينې
د ګلـــــو لــــښتــــې، يــــه نــــازنينې
ستــــا پــــه ستــــم مــــې، قلم قلم زړه
ستـــــا په تومت مې، جامې رنګينې
نـــــه مـــــې هېرېږې، نه در رسيږم
لـــه ليـــري مـــرمـــه، نژدې سوزېږم
خـبـــره نـــه شـــوې زمـــا لـــه سوزه
خبــره نـــه شـــويـــزمـــا له مينې.
سهار رانــغـــى، بــيــا مـاښامونه
بــيـــا د غـــلـچـــکو شپو ،يرغلونه
ځلانـــده لــمـــــره، ځپانـــده لمره !
لږ راخـــورې کـــه، زلفې زريـــنـــې
مېـــکدې ورانـــې، رنـــدان خاموشه
نه څوک عاقل شته، نه څوک مدهوشه
د تاک رګـونه، پاتـې لـــــه جـوشه
تـــشـــى پـــرتـــې دي د مـيـــوپيني

آلمان دسمبر ١٩٩٧

# د الینا سندره

زما لغمانه، ښایسته لغمانه
بیا دې یادونه په زړه ووري راته
بیا مې په خوب، بیا مې په خیال کې ته یې
بیا دی غمونه په زړه ووری راته

❋ ❋ ❋

لکه له مور جلا شوی ماشوم
هره شېبه درپسې وژړېدم
لکه د تورو ماښامونو شمه
درپسې ویلې شومه وخڅېدم

❋ ❋ ❋

نور دې په شپولو کې شپانه نه وینم
نور دې تالو کې رمې نه ثري
نور دې ناوونه له ایوانو ډک دي
نور دې په غرونو کې غرڅې نه ثري

❋ ❋ ❋

بیا دې حجرې سړې، پرتې دي
بیا دې دېرې دي له زلمو نه تشې

بیـــا دې د ښکلـــو ګـــوډرونو غاړې

لـــه پـــېغلـــو تشې، له منګو نه تشې.

* * *

بیـــا د ســکـــــروټـــو په سین ننوتې

بـــیـــا دي سینـــه پـه لمبو وسوزېده

بیـــا دې ګـــرېـوان له غمه څیرې څېرې

بیـــا دې پـــګړۍ لـــه سره وغورزېده

* * *

د "الـــــیـــنـــګار" لـــه ذهـنـه و وتله

د "الـــــیـــنـــا" د لـوی پـر تـم سندره

د "الیـــشــــنګ" پـــه شونډو غوړېده

د غـــــم سنـــــدره، د ماتـــم سنـــــدره

* * *

بیا دې "کلـمان" په تورو ورېځو کې پـــټ

بیا دې "سالاو" په سېلاوونو کـــــې ډوب

بیا دې "سنګر" په سرو سکروټـو ســتـــي

بیا دې "منـــګو" په شنو دودونو کې ډوب

* * *

بیا د "نـــرنـــګ" نـــښتـــرو اور اخیستی

بیا د "وایـــــګل" پـــه ګلـــو اور ووري

بیا د "کـــرنـــج" مـــمـــانيې ویني ژاړي

بـــیـــا د "ســـایګل" په ښکلو اور ووري

* * *

بیا د غـــاټـــولو غـــاړې ټیټې ښکاري

بیا د نرګس له سترګو نـــم څـــڅـــېږي

بیا د ګلاب په تـــن کې ویـــنـــه وچـــه

بیا له رامبـــېـــلو نـــه مـــا تـــم څڅېږي

* * *

بـــیـــا دې دانې، دانـــې د اوښکو غمي

له سترګو څاڅـــي، امـــېـــدونـــه کري

د اور اوویـــنـــو په تـــبـــجنـــه دښـــتـــه

د سبا نـــي بـــهـــــار ګلـــونـــه کري.

* * *

زما لغمـــانه، ښایسته لـــغـــمـــانـــه

ستا حماســـه مـــې د وطـــن سنـــدره

ستا د ننګـــونـــو د یـــادونـــو قـــصـــه

زمـــا د ســـاه، زمـــا د تـــن ســـنـــدره.

کابل چنګاس ۱۳۶۴

# د بلبل ساندي

که وربمه یــې راروانــه د کاکل شـــي
د دي وچې دښتې ترخي به ګل، ګل شي
ماته ځانګه داغزو شي چې لاس وروړم
د رقیب په لاس کې لښته د سنــبل شي
د زاهــدزړه بـــــه له خپله ځانه تورشي
که یــې ستـــرګې آیینــې ته مقابل شي
د زړه پاڼې، پاڼې ګل بــه تر ښنه ځار کړم
که مې تللی آ شـــنا بیا راسره خپل شي
د آشنا په ا صالت بـــاندې پوه نه شوم
کله جوړ تر ینه پښتون کـــلـــه مغل شي
چــې غـو ټی په خپله لنډه خندا خاندي
تـرینه جــوړې سوې ساندې د بلبل شي
زنــګوم بــه یــې د سترګو په زانګو کې
کــه نصیب راته خوبونه د کابـــل شي.

آلمان

۲۰/۸/۱۹۹۹

# زولنې

ساقي په جام کې راوړلې، اوريـنــې زولنې

د عقـــل لېــونــيـــو تــه، د مينـې زولنې

ساده زړه ته مې ګوره په هـــر چا کــوي باور

بنګړي ورته ښکارېږي پـــو لاديـنـــې زولنې

خاونده تشې مه کړې دا کــــوڅې له ليونو

ما تېږي چې يې پښو کې پر تــميني زولنې

روايې خله زاهده وي دې تا تـــه مــبارک

دا تور نصيحتونو او داسپيني زولنــــــې

پرون مې ښکلول د آشنا لېچو کې بنګړي

بيګا مې خوب کې وليدې رنګينې زولنې

ما ښام مې باغ کې واورېده سندره د اغزو

سهار د ګل په پښو کې وې زريني زولنې.

کابل

تله ۱۳۶۷

# د رڼا جام

تا ته به یاد وي که نه،

هغه شیبه چې ما په مینه مینه،

تا ته د زړه جونګړه پرانیستله،

ته مې د هیلو ښنتېځلي باغ ته و بللې،

ما ویل ته به راشې

او پسرلی به راشي

او توتکۍ به په وزرونو کې ګلونه راوړي،

او دغو ټیو ښایسته ډمې به،

د وچو لښتو د یادونو په بام و نځېږي

* * *

ما ویل زه به ستا د سترګو له روښانه چینو ،

د رڼا جام وڅښم

او د ژوند ون هره شېبه به د رڼا په سین کې ولمبوم،

او تر وږمۍ به مې د زړه له سزېدلط ئاره وباسمه.

حو مره ساده ومه زه.

* * *

زه د وږمې تږی وم،

ما د باران د رتلو لار څار له،

ما په شنو لښتو کې د سرو ګلو خوبونه لیدل.

ما ویل ته که راشې

نو پسرلی به راشي،

زه به د شنې وږمې به شنو وزرو والوزمه،

په غرور غونو کې به و ګرځمه،

د وچو بوټو په رګونو کې به شور ویښ کړم

د سپېرو څانګو په غوږو کې به ایت د ژوندانه ووایم

څومره بېځا یه هیله.

* * *

تا ته به یاد وي که نه،

خو زما هیره نه ده،

هغه شیبه چې ته زما د زړه جونګړې ته راننوتې،

بیا مې د هیلو باغ کې و ګرځیدې

د لمبو ختې دی به غاړه پرتې،

او په پښو دې د سکروټو سرې پڼې ښکار بدې.

ستا له راتګه سره،

زما د هیلو باغ د اور په سمندر پرېوته.

نه مې ورېمه ولیده

نه سترګو د رڼا جامونه،

نه ټو تکیو په وزرونو کې ګلونه راوړل

او نه باران په وچو د ښتو د الماسو دانې ولو نلې.

* * *

اوس مې د زړه جونګړه،

د تر ورېمیو په څپو کې ډوبه

اوس مې د هیلو نښتېځلي باغ کې،

د سرو غو ټیو په ځای

د سرو سکروټو، سره ګلونه خاندي.

زه د رڼا د جام په یاد په خپلو ټولو ساده ګیو ژاړم،

او په خپل زړه کې مې د هیلو د مزار په څلي، او ښکي شیندم.

آلمان

۲۰/۷/۲۰۰۰

# د هیلو په مزار

که زه جامونه تشومه ، شیخه ستا یې پــې څــــه
زړه په سکروټو داغومه ، شیخه ستا یې پــې څـه
که له ساقي نه مې دعقل زولنـــې غــوا ړمــــه
که زنځیبرومه شرنګومه ، شیخه ستا یې پــې څـه
که دتقوا له ښاره ووتمه زیـــان یـــې څــــه دی
که خرابات جاروکومه ، شیخه ستا یـــې پـې څــه
ته د سجدو کچکول کې غواړې ترې وصال د حـورو
زه یې کچکول نسکورومه ، شیخه ستا یې پـې څـه
زه له ما ښامه تر سهـــاره پــــه مــــزار د هـــیلو
داوښکو شمې بلومه ،شیخه ستایــې پـې څــــه
چې دآشنا کوڅې ته ځمه هـــر بــیـــګاه او سبــا
هلته مې ستر ګې خوړومه، شیخه ستا یې پـې څــه
تورو خاموشو ماښامونو کې غوغـا کــــرمـــــه
ویدې نشې راپارومه ، شیخه ستا یـــې پـې څـه

کابل

۱۳۷۰/۶/۲۸

# دکاروان په هیله

ستا هغه مستې خبزلوخې سترګې ،

چې يې په سلو ژبو ،

ماته سبق دمحبت راکاوه .

اودساړه ژمي په شپو کې به يې

زما دزړه کوډله ،

مدام روښانه اوتوده ساتله .

اوس دسړې سيلۍ په توره شپه کې

ستړې ،

خاموشې ،

اوسړې ،

ښکاريږي .

زه ستا دسترګو دخبرو تږی

دشپې په توره ، نا څرګنده دښته ،

لکه ستومانه مسافر چې ديو څاڅکي اوبو په تمه ،

دکوم بې نومه ، ناڅرګنده ، کاروان لاره څاري

دشپې په توره اوشګلنه دښته ،

دتا دسترګو دخبرو دکاروان په هیله ،

# هیر

کلونه وشول چې دې نه وینمه
غزل د سترګو دې لوستلاې نه شم
نور مې دا سترې سرګردانه نظر
ـ دا دا غزنو اوږدو لارو د سفر لاروی ـ
ستا د خوږو سترګو چینو کې لمبولای نه شم.

* * *

نور مې د سترګوردګودر په غاړه
ستا د پښو پلو نه هم نه ښکاري
نور مې د شونډو دبېدیا په څنډو
-په دې شګلنو بې بهاره تالو-
ستا د بوسې ګلونه هم نه ښکاري

* * *

نور دې د خیال په اسمان نه ځلېږم
نور مې د خوب کلي ته هم نه راځې
داسې ښکار برېي چې هېر کړی دې یم
د ګلورینو خاطرو له باغه
د وچ لرګي په شانې لیرې غورزولای دې یم.

زما او ستا هـغــه اوريـــنــه ميـــنـــــه

چې ځلېد لــه، بــلـــېـــد لـــه مـــدام

هغه د تورو ماښـــامـــونـــو ډيــــوه

-لکه د شپو په زړه کـــې بلــه شـــمـــه-

چې سوځېدله ، خنديـــدلـــه مـــــدام

اوس پــه کې اور نه شته ، سپرغۍ نـــه لـري

اوس له رڼـــا ډکه ځـــولــــۍ نـــه لـــري.

خو لا تر اوسه مې دزړه په قــــاب کـــــې

يوازې ستا دمخ تـصــويـــر پـــاتـــې دى

يوازې ته مې يې دذهن پـــــه ډولۍ کې ناسته

يوازې ته مې لکه وينه په رګــو کــې جــاري.

آلمان ــ نومبر ــ۲۰۰۰

زمـا کــوچــنــي " ځـــلا " تـــــه :

# د انځر ونه

که د انځر ونه ګل ونيسي ،

زه به مې سترګې باغ کې وکرمه

او ترسبا پورې به

د وږمې لارا ،وڅارم،

او دا ټوټې،

ټوټې،

ټوټې،

زړه به مې،

د شنې وږمې په لاره،

پاڼې،

پاڼې،

وشيند مه.

که د انځرو ونه ګل ونيسي،

زه به مې سترې او ساړه لاسونه،

د باغ په وچ لښتي کې وبهوم

ونې به ويښې کړمه.

د باد په کنډوالوکې

کاوون توفاني

او د سپېرو لښتو په ذهن کې به،
د سرو غټېو ترانه وکړم.

* * *

که د انځرو ونه ګل ونیسي،
زه به د ورېځو له ړندو سترګو نه،
په جل وهلو بوټو، څاڅکی
څاڅکی،
وڅڅېږم،
او پسرلی به له درندو خوبونو پاڅومه
که:انځرو
ونه،
ګل،
ونیسي.

المان- اپریل-۱۹۹۸

# ګل او ستوری

١

ته لکه ګل ،

لکه له شنو وړمو نه هيره غوټۍ ،

د ساړه ژمي په سړه خيله کې وغوړيدې.

خپله توده ارواډې ،

په يخ وهلو څانګو وويشله.

* * *

ته لکه ستوری ،

لکه پاک او ځليدونکی ستوری

په تورو تپو شپو کې ،

د شنه اسمان په تندي وځليدې ،

او په زړي شغلو دې ،

د شپې شډلې کوڅې ووينځلې.

* * *

تا د سمسو رو پسرليو دراتلو په هيله ،

تا د سرو ګلو دباغچو دغوړيدو په هيله ،

تا دبلبلو په یاد ،

تا دسندرو په نوم

په مړاوو بوټو کې دساه د ټوکیدو په هیله ،

خپل ځان ،

وربمه ،

وربمه ،

کړې.

*  *  *

تا د رنګین ښایست تلپاتې تصویر ،

د شعر په ښکلو ګوتو ،

د سپېرو تیږو په تخته وکاږه

او خړو تورو ته دې،

د رڼا رنګ ورکړ.

تا د سپوږمۍ په غوږ کې،

د لمر زرینه ترانه جاري کړه.

او د بې نوره شپې په څنګ کې دې،

د ابدي رڼا ،

ګلان،

وټومبل.

**ته لکه ګل،**

**لکه له شنو وږمو نه هېره غوټۍ،**

**د بې بهاره کال په تور فصل کې،**

**د تر خه باد په لمن،**

**پاڼه،**

**پاڼه،**

ورژېدې

**ته لکه ستوری،**

**لکه پاک او ځلېدو نکی ستوری،**

**د سا ړه ژمي تکو تورو شپو کې،**

**د شنه اسمان له سترګو ،**

**څاڅکی،**

**څاڅکی،**

وڅڅېدې.

آلمان- می- ۱۹۹۸

# بدله کوځه

اشنا پردی ، کوځه بدله ښــــکاري

ټوله دنیا راته ، شډله ښــــکاري

پسرلنی ښکلايې وغـــوړیـــده

دګلو باغ يې له وربــله ښــــکاري

بلبله پام کوه بې هـوډه نـه شـــې

لاره اغزنه تر سنبلـــه ښــــکاري

اسمانه نور مې هـمت مــه ازمایه

تاته ما ښې ماته کو ډله ښـــکاري

څومره اوچت دی افغاني غرورمې

دسوال غونچه راته خځله ښکاري

پتنګه راشه که وزر تـــــودوي

لا يې دحسن ډیوه بله ښــــکاري

دګلو جوش دی که شغلې شهیدې

چې له هراته ، تر کابله ښــــکاري.

المان

۱۹۹۷/ ۷ /۲

# شپه ده

دلــمر په کلي باندې ، بره  شـــپـــه ده

دژمي شـــپه ده ، بې سحره شـــپـــه ده

سپـــوږمۍ ویده ده ، ستوري نه ځلیږي

لکه مــازدیگر تر مازدیگره شـــپه ده

بلخ او هــري په تــروږمیو کـــې ډوب

له بــد خــشانه تر خــیبــره شپـــه ده

رستـــم په ځـاه کې  دشـــغا لـــویدلی

ډکه لــه درده  ، له پـــر هره شـــپـــه ده

نـــوروته لمر دی په قســمت ورغـــلی

زمـــوږ په بر خه  ، بـــرابـــره شپـــه ده

په تـــورو وریځو کې بریښنا شوه چیرې

که یـــې لـــه زلــفـــو مـروره شپـــه ده

گـــــل دوربـــل دې راتـــــه وځـــلوه

جانانه شپه ده  ، ســتمگره شـــپـــه ده

المان

۱۹۹۸/ ۳ / ۲۷

# دیا دونو په مانۍ کې

ماته یادشي ځومره سخته اوترخــه وه
هغه ورځ چې مورې له یو بل نه جلا شوو
ته په خپلې لارې ولاړې ، زه په خپــلې
دژوندون په لویه دښته کې تنها شو و.

❉ ❉ ❉

ستا له سترګو څڅیدل غمي داوښــکو
خوپه شونډو دې ترخه موسکا خوره وه
نه خوراته څــه وویل نـــه مـــا څـــه
پوهیدو چې دوصال وروستۍ شیبه وه

❉ ❉ ❉

مادې ســترګو لوستلې تو قسمـــت و
مادې زلـفو کې لیدلې تورې شپـې وې
ما لیدل چې تورتمونــه وه په مـــخ کې
مالیدل چې راخورې تــورې تیــارې وې.

❉ ❉ ❉

پو هیدم چې د اغزوپه څوکــو تګ دی

پوهیدم چې د سکروټو ښـــــکلول دي
پوهیدم چې په کوچني بې وسه زړه کې
دغمو دلویـو غرونـــو ځـــایـــول دي.

* * *

اوس چې ګورمه دوخت دغرو له شانه
لاتر اوسه مـوږ هماغسې تنـــهـا یـــو
نه مو لارې بیرته بیا یو بل تـــه رســـــي
نه دمینې ناوکۍ منزل تـــه بـــیـــا یـــو.

* * *

خوتر اوسه مې هماغسې پــه زړه کـــې
لا ژوندي دي ستا خواږه خواږه یـادونه
هره ورځ مې سترګې تاپسې غـــړیـــږي
هره شپه راسره مله دي ستا غـــمـــونـــه.

* * *

راته ګرانه یې تراوسه راته ګـــرانـــې
لامې زړه کې ستا دمیـنې اوربـلیـــږي
لامې اوس هم دخوبـونو ښاپیرۍ یـــې
لادې مخ راته یالونو کې ځلــــیـــږي.

* * *

لامې اوس هم دلندو سترګو هنـدارې

تشې نه دي ستا د سترګو له تصـــويـره

لامې اوس هم د يادونو پــه مانۍ کـــې

يوه شمه پــــه لمبو کـــې ده اسيـــره.

المان

اګست ۲۰۰۰

# د پوښتنو تصویر

پردیسه چیرته ځې ، دچا په هیله ،

دکوم آرمان په لوري لاره وهې

منزل دې کوم دی ، دمه ځای دې چیرته ؟.

له کومه راغلې او په کومه درومې ،

پدې اوږده ،

کږه وږه لاره ،

تنها کې پښې.

دژوندون پیټی دې په سترو اوږو ،

دلارې دوړې دې په بڼه پرتې ،

ددوارو سترګو دکتاب پاڼې دې ډکې له پوښتنو ځنې.

پدی اوږده اوډبرینه لاره ،

ډیر کاروانونه تللي ،

ډیرو ستومانه مسافرو مزلونه کړي ،

خو چاته پته نشته ،

چې له هغوی نه څوک ،

منزل ته

رسیدلي ، که نه.

او دتاریخ په ډبرینه اواغزنه‌لاره ،

له هغو تولو نه یواځې یو تصویر پاتې دی ،

یو بې حسابه ، بې ځوابه ، دپوښتنو تصویر ،

درزیدلو ، نښتیځلو ، آرمانونو ، تصویر ،

اودغمونو ، تصویر ،

پردیسه !

چیرته ځې ، دچا په هیله ؟.

المان

۱۲ / ۷ / ۲۰۰۰

د باد په کنډوالوکې

کاوون توفاني

# توره ږلۍ

په پلو کې يې شغله په بلۍ راوړه
که آسمان په ګريوانه کې سپوږمې راوړه
درنا ناوې پلو په مخ راخپور که
تورې شپې د ترو ږميو ډولۍ راوړه
زه د ګلو د غونچو په تمه ولاړم
خو اغزيو نه مې ډکه ځولۍ راوړه
دلمبو غو ټيو باغ په سر اخيستی
سپينو وريځو تکه توره ږلۍ راوړه
وچوې دونو وينه په رګو کې
درواغجن پسرلي يخه سيلۍ راوړه
چې د خپلې غاړې هار پرې ښايسته کړي
ماغريب ورته داوښکو ډالۍ راوړه
دښو په سر يې بيا ستوري ځلېږي
داسې ښکارې ماښامونو دی راوړه
دآشنا د سنهو بوی له کلي ووت
لمره ته ورته دزلفو ګېډۍ راوړه.

کابل ــ ثور / ۱۳۷۱

# دلمر له باغه

زه به دلمر له غوړیدلي باغه

یو څو تازه ګلونه وشکومه

او ستا دزلفو توره شپه به پرې رنګینه کړمه.

زه به دپرخې دالماسو دانې ،

دشنې ورېمې په تار کې وپییمه

او ستا په غاړه به یې وځړوم.

که ته یو ځلې او دتل لپاره ،

زما دزړه کور ته راننوزې ،

او بیا دمینې په نوم ،

راته هماغه هیرې شوې ډیوې ولګوې

هغه چې ما اوتا په ګډه سره ،

دلوبې مینې په نوم ،

زمونږ دهیلو په ماڼۍ کې امانت ایښې وې

المان

اپریل ۲۰۰۱

# هم له تخت، هم له تابوته

نور دې څوک نه پېژني ،

نور دې هیڅ څوک هم ، نوم په خوله نه اخلي.

نور له هرچانه ورک یې ،

نور له هر چانه هیر یې

نور نه دېلي ، نه سپاره په یاد یې

او هغه سپین آس دې ،

ـ چې له هر څه او هر چا ګران ودرته ـ

نور ستا له یاده پردی شوی ښکاري ،

اوته له هر څه اوله هر چا نه پردی یې ورته .

نور دې له غرېه دچا زړه نه ریږدي

نور دې له چیغو دچا ځان نه رپي ،

نور ، هم له میني ، هم له کرکې تش یې.

نه دې په ګل ،

نه دې په تیږه کې ،

اثر ،

پاتې دی.

نور دژوندیو له سرحده تیر یې ،

نور دې ځوک نه پيژني ،

نور ،

هم له تخت ،

هم له تابوته ،

هيريږي.

المان

۱۹۹۸/۲/۲۸

د باد په کنډوالو کې

کاوون توفاني

# دعا

بارانه تاته مې لاسونه په دعا نیولي

تاته زارۍ کومه ،

لږ خوزمو ږ په سوزیدلو کروندو ووره.

* * *

سږ کال خوهم لکه دتیرو په شان ،

داسې ښکاریږي پسرلی نه لرو ،

سږ کال خو هم سنځلو ګل ونه که

بوی درامبیل نه را ځي ،

ورېمې په زلفو کې رانه وړي دنارنجو غوټۍ.

* * *

سږ کال خو هم باغ ته نرګس رانغی ،

ګلابو کډه وکړه ،

نیالګي له ځانه سره ژاړي ، ونې سا نه باسي

ملیار په باغ کې دتبرونو بزغلي کرلي.

* * *

سږ کال خو هم غاټول ونه ټوکیدل ،

او په ګل خیزو دښتو ،

دګنډیریو زهرجنې څانګې وغوړیدې ،

کوچیان رانغلل ، په بیدیا کې کیږدۍ پلنې نه شوې ،

تشو کنډرو کې اور ونه لګید .

جړاوې نه شوې په ځنډیو داوبنانو غاړې ،

رمې په تالو باندې سمې نه شوې ،

شپانه په شپوله کې شپیلۍ په شونډو پورې نه کړه ،

څړتون خالي پاتې دی ،

هوسۍ دغرو څوکو ته وختلې ،

ګړي آسمان ته خوله نیولې دیوه څاڅکي اوبو په هیله.

* * *

سږکال خو هم دتو تکیو دوزرونو سرود ونه غږید ،

زموږ دکلي دمسجد په نږیدلي چت کې ،

دتوتکیو په ځای ،

تورو غومبسو چتې جوړې کړلې.

څوک به آیت د "ابا بیل" ووایې

څوک به کاڼو ،

دسپیرې دښتې ،

پیلان وولي.

* * *

سږ کال خو هم تا لندې ونه خندل ،

دغور غوري بابا برقي قمچينه ،

دتورو وريځو ذاسونو په ملا غبرګه نه شوه .

او داسمان له تورو تپو سترګو ،

د «رحمت» يو ځا څکې ونه څڅېده.

موږ له اوږدو مزلونو وروسته ،

داوبو په تمه ،

سراب ته،

ورسيدو .

* * *

بارانه ووريږه ،

تاته زارۍ کومه ،

يو ځلي بيا زموږ په کلي پسرلې راوله.

المان

اپريل ۱۹۹۳

# دایمان په‌لمن

لامې تراوسه ستوري څاڅي دګریوان پــه لمــن
دزړه دودونه مې لګیږي داسمان پــه لــمـــن
دګلو ناوې نا امیده دسپرلــي ډولــۍ کـــې
زخمي بلبل ورته ژړیږي دخزان پـــه لــمـــن
پردې وطن دی مسافرې شپې په غم تـیــروم
کاشکې یوه شیبه ویده وای دجانان په لمـــن
وجود مې اور اخلي سوزیږمه ، لمبه لمبه شـم
چې دسکروټو باران ګورم دافغـان په لمـــن
ساقي له خم نه مرور ، خم له صهبـا نه خالـــي
دمیکشانو ډلې ګرځي دبیا بان پـــه لـمـــن
بیا زوړ زاهد دی بیا هماغه محتسب وختونه
بیا مې داغونه دي چې څاڅي دایمان په لمــن
هسې مې ډکه شوه دزړه دښته له زیړو ګلـــو
لکه چې ستوري وي ټو مبلي دآسمان په لمن

آلمان

۱۹۹۴/۲/۲۳

# د سکروټو په اقلیم کې

د سکروټو په اقلیم کې ګلان نـشتــه
په خوړلن کې غاټول کله زرغونــېږي
ګله ! بل چیرته یې ځاره دوړمـــې لار
سیلۍ ستا په پسته ژبه نه پو هیږي.

# یوه هیله

توري خاوري به یې پوري کړم په سترګو
که قسمت یو ځلي بیا وطن ته بـــو تلم
خپلي اوښکي به بې پرخه کړم د ګلـــــو
که کوم باد هغه ښایست چمن ته بو تلم

# نه ګل ته، نه اغزي ته

له تندي مرمه ، خو ساقي ته مې لاس نه رسـيږي
د تر خو ميو ، کندولي ته مې لاس نه رســــيږي
د دې بې رنګه او بې بويه پسرلي په شــپو کــې
ګل خو لا پريږده چې اغزي ته مې لاس نه رسيږي
لکــه د ژمـــي د کمــره پـــه ســر ولاړه ونــه
له وږمې هير يم پسرلي ته مې لاس نه رسيـــږي
لکه داوښکو ځاځکی پریوتم په خپل ګريــوانــه
تشه سيپۍ يمه غمي ته مې لاس نه رســـيـــږي
په پټه خوله يې د هجران په سرو سکروټو سوزم
ژړامې هيره اسويلي ته مې لاس نــه رسيــــږي
چې پکې وڅکمه ديار د خوږې مينې تــرخـــه
د زړه ټوټې ټوټې کودي ته مې لاس نه رسيـــږي
ماويل وابه خلم کسات تري د شهيدو شپـــبـــو
خو ګريوانه د زندګي ته مې لاس نه رســـيـــږي.

المان

۲۵ / ۶ / ۲۰۰۰

# لمر ته سرود

۳

لمره ! که ته په خوب ویده پاتې شې

او یو ځل بیا زموږ د کلي په آسمان باندې ونه ځلیږې

څوک به د شپې په تکه توره دړه ،

د طلایي شغلو غزل ولیکي ؟.

❋ ❋ ❋

لمره که ته خپلې ګلبویه زلفې ،

پدې اغزنه شپه ونه غوړوې

څوک به د ژمي په یخجنو دښتو ،

د پسرلي د ګلو سین سم کړي.

څوک به د باد کاږه واږه لاسونه ،

د نسترنو له تنکیو غاړو وښو یوي.

❋ ❋ ❋

څوک به په غرونو کې ،

ورمې ویښې

کړي .

ځوک به د دښتو دغاټول په تنکیو شونډیو ،

خوږه موسکا وکړي.

ځوک به د پرخې نازولې لونې ،

دخپلو ځنو په وریښمینونورانې ټالو نو وزنګوي.

ځوک به د مستو بلبلانو په ګونګیو ژبو ،

دمحبت سندرې وبهوي.

ځوک به دځوانو غزلبو لو توتکیو ګلالې وزرونه ،

دسپین سهار په شدو ولمبوي.

ځوک به دباغ په غوږ کې ووايي دګل دغوړيدو سندره ؟

لمره !

که ته ،

په خوب ،

ویده ،

پاتې شې.

المان

۲۳ / ۱۰ / ۲۰۰۰

# دمينې ترږون

بيامې جـــانــانـــه ، دزخمي زړګي په سوې للمه
ستا دخـــوږو ، خـــوږو يـــادونو بـاران ووريــده
بيا مې دمـــــړاوو خاطـــــرو په رژيدلـــي چـمــن
دپسرلي دســـرو ګلـــونـــو پـــاران ووريـــده.

* * *

کلونه وشـــول چـــــې له تا نه جلا شـــوې يـمـه
کلونه وشــــول چـــــې په تا مې سترګې نه خوږيږي
کلونه وشـــول چـــــې دنيا لکه زنـدان ده راتــه
کلونه وشــــول چـــــې دسا وزر مې نــه غوړيږي

* * *

اوس مـــې يـادېــږي هغـــه تللي هغه تيرې شيبې
هغه دګلـو غـــونــــدې ښکلـــي اورنګين وختونـه
هغه دمينې درنا پـــه ميـــو مـستـــې ورځـــې
هغه ســـاده ، هـغـــه سپـيـــڅلي نازنين وختـونـه

* * *

چې مـې لـــه تـــا ســـره ترږون پـکې دمـيـــنې وکـــه
چې ستا پـــــه غـــيـــږه کې مې ځان او جهان وپيژنده

ته مــــې کعبـــه شــــوې درته زه په لمانځه ودریــدم
ستا په لمنه کې مــې هــــوډ او ایـــمـــان وپیژانــــده

* * *

ماویل زه به دې جانانه جنـــتي ښـــایـــســـت تـــه
د سروغوټیو غوندې ښکلې ســــور غــــزل ولــیکم
ماویل زه به دې دتور ټکري پـــــه تـــورو څـــنـــډو
دلمر په اوښکو حماسه د سره تـــــــکل ولـــــیــــــکم

* * *

ما ویل زه به ستادزلفو په حسینو شـــپــــو کـــې
دابدي مینې ځلانـــده ســـــتـــورې وځــــلــــوم
ما ویل زه به ستادمخ هغه سپیڅــــلې ســــهـــار
د پسرلي دشنې وږمــــې په عـــــطـــرو ولــــمــبوم

* * *

ماویــــــــل زه په دتیـــــارو اوږده ، اوږده لاســـونــه
ستا پـــه زرینو ، پرتـــمــیـــنــو زلـفــو وتــړمـــه
ماویل زه به دبـــــــدرنګې شپـــې ناولې کــجــیــر
دسپینې ورځــې درنـــا پـــــه غـــشو وولـــمـــه.

خودتیارو دخدای ، بـــدرنــــــگه ارده بـــلـــه وه
ستا برخــه لیک یـې دبادونـــو پـــه وزر وتـــاړه
ستا په تندي يې آيـــا تـــونـــه دلـــمبـــو ولیــکل
ستا په ټیـــکري يې دسرو وینو سـمنــــدر وتـــاړه

* * *

مامـــرغـــلـــرې ستا له سترګو نه راټولې نـــه کړې
مادې پـــه زلـــفـــو دآرمان کلونه ، ونـــه ټـــومــبل
دماتمونو توروشپـــو تـــه دې څراغ نـــه شـــومـــه
دزړه داغلې پـــرهـــارونـــه مـــې دې ونـــه ګنــډل

* * *

چې ستــــا دزړه پــــه ښار لښکرې دماتم وخـــتـــې
مایې یوازې پـــه ســـرو ستــرګو تما شـا کـــولـــه
ستـا پـــه دردونـــو اوپه خپلې بـې وسۍ مـــې ژړل
ته ســـوزیـــــدې مادرته هیلـــه دبـــقـا کـــولـــه

* * *

خدایــزده چـــې ستـــا په زوریدلي زړه به څه تیریږي
ښايي چـــې ستـــا تـــه به بې هوډه ، بې وفا ښکارمه
ته به مې وړ دخـــپـــلې مـینـې دپـــرتم نـه ګـــڼـــې

تاتـــه بـــه مـــات ښـکارمه تاته به رسوا ښکارمـــه.

* * *

مات خـــو بـــه يـمـه ، خوجانانه بې وفا نه يـمـــه

دتومتونو زنجـيـــرونـه په پـښـو گـرځـوم

له تا نـــه لـيـــرې ، پـه پرديو نا آشنا کوڅـو کـې

دمجـبـوری دژونـدون پـيټی پـه اوږو گرځـوم

* * *

خوستـــا دستـــرگـــو په زيارت باندې قسم کومه

يوه شيـبـــه دې هـم لـــه ياده جلاشوی نـه يـم

دشنـــه بـــاور په کرونده مې لا هـــو ډونه شنـه دي

دسرو غاټـــولـــو پـــه تـړون باندې ختلې نـه يـم.

* * *

دياد پـــــه دښـتـــه کـــې مې څرې ستادمينې هوسۍ

دخوب بـاغـچـه مې ستـــا دحســـن په گلونـــو پټه

دذهـــن دړه مـــې يـــوازې ستـــا نـا مـه پـوښـلې

دزړه مانۍ مې ستا په ښکلو تصـويـرونـــو پـــټـــه.

المان

جنوري ۲۰۰۱

# دتروږميو بهير

ستا دزلفو سلسلې مې دیا دونو سـلسـلې شوې

دیوې شيبې خنداوه ، دغمونو سـلسـلې شوې

سپوږمۍ مخ دی راښکاره که ، دتيارې شپې له کندوه

چې دلمر زرينې څپې ، ددودونو سـلسـلې شوې

په نمجنو سترګو څـارم ، دآشنـا دقـدم لاره

خو وعدې دنن سبا يې ، دکلونو سـلسـلې شوې

دابهير د تروږميو ،درنـا پـه کالـه راغې ؟

که شيبې دخوشاليو ، دويرونو سـلسـلې شـوې

په وجاړه ميکده کې نه ساقي او نه صهبـا شـتـه

دکوثر داميد تنده ، دعمرونو سـلسـلې شـوې

له جنته راوتلی ، ددوزخ په څنډو ګـرځـم

هم ثواب او هم ګناه مې داورونو سـلسـلې شـوې

مايې زلفې ښکلولې ، په خندا يې راتـه وويـل

چې کاوونه دادې پېښو ته ، ددامونو سلسـلې شوې

المان

اګست ۱۹۹۷

# د سپلمۍ ګلونه

چې خندا يې وريده ، له اننګيو
اس يې اوښکې د غم څاڅي له ککيو

د ديوانو دلبرکرو چپاو راغی
کوه قاف نه کډه وکړه ښاپيريو

رنګ و بوی يې د اشنا د کلي نه دی
کا غذي ګلونه راوړل پسرليو

بيا يې موږ ته کوم ناتار په خوب ليدلی ؟
د آسمان ناولو ستر ګو خونړيو

د ممانړو لښتې ريږدي له وحشته
تبر شين شو په ځنګله کې د څيړيو

رژوي زرغونې پاڼې د نارنجو
د لمبو څپې راوړي دي سيليو

د زنځير ترانه کښيناسته په شونډو
د شمشير ترانه پريوته په مريو

نه بلبلو د شنه فصل زيرې راوړ
نه خو بيا غاړې تازه کړې توتکيو

خړې تالې سوزيدلې سپيرې د ښتې

ښکلې نه شوې د غاټولو په غالیـــــو

نه په شنو جلګو کې بل شول سره اورونه

نه د ګلو لښکر وخوت په غونډ یــــــو

نه په باغ کې د مرسلو شونډې سرې شوې

نه په دښته کې بیا وخندل ریـــدیـــو

نه رامبیل زلفې خورې کړې په ګـــلابو

نه نرګس واخیسته ناز د چـنبیلیـــــو

نه د مشکو کاروان راغې له خـتنــــه

نه په غرو کې عطر وشیندل هوســـیو

نه شبنم مخونه ووینځل د پـــاڼـــو

نه ورږمې شونډې تازه کړې د غوټـــیو

نه بیا پیغلو په پلو کې غونچې راوړې

نه یې زانګې امیلونه پـه غـــــړیـــو

نه سپوږمۍ شوه د مینو پیـغـامبـــره

نه را وختلې نجونې ، په بلـــــــیـــو

نه ساقي سکروټې تویی کړې په جام کې

نه راجګې شوې لمبې له کـنډولیـــو

نه سوما شته نه متونه د کــــوثـــرو

نه شراب ، نه خوږې شونډې د شـــهـــیو

نه د مینې په مزار شمه شـــوه بـــلـــه

نه ځلا په " نوبهار "کې د ســـپـــر غیو

نه نغمې کړې ، نه نڅا د بګرام ترکـــې

د ماتم کالي اغوستـــي کابـــلـیـــو

نه ګرمي د رزم پاتـــې نـــه د بـــزم

نه شرنګا د زولنو نه د بـــنـــګړیـــو

سپوږمۍ ونغښته د وریځو په ټیکري کې

ستورو ولمبل د توري شپې په پـــیـــو

د سهار زخمي سرباز په وینو سور شـــو

مرغلین کڅونه ونیـــول غـــدیـــو

د تقوا جامې په تن د شیطـــا نـــانـــو

د تسبو امیل په غـــاړه دلـــولـــیـــو

دیما په تخت جـــګـــړه ده د کـــربـــوړو

دو یا ړونو تاج په سر د چرمښـــکیـــو

رنګیو ي د نیک وبد د تو پیر پولـــــه

پروني مخونه سپین کـړل نـــنـــیـــو

په شملو کې یې پرتم د پـــرون نـــشته

دغرور هنګامه تللې له پــــګــــړيــــو
چې نهنګ يې ځان باله د دريــــابـــــونه

اوس يې ګوره په وياله کې داوبړيـــــو
آرمانونه شول پوره دميـــر خــــمنـــو

وينې څاڅي د مردانو له کـــوپـــړيــــو
دزنګي غلام دتورې درنـــــا وي تــــه

دبا با پګړې را کوزه کړه لـــــمسيـــــو
بيا هما غه تورې شپې تورې ســـنــدرې

بيا هما غه تور يرغل دتروږمــــــيـــــو
بيا هما غه محتسب زاړه وخـــتـــونـــــه

بيا هما غه زړه لـــوبـــه دپـــيــــړيـــــو
بيا هما غه دبل تــــوره دورور غـــاړه

بيا هما غه سور دزخ ددښـــمـــنـــيــــو
تورې وريځې توروي ځلانده ستــــوري

تورتمونه زنګوي لمر په کـــمــــڅـــيـــو
دسپلمۍ ګلونـــه وړ دوربـــل نـــه دي

چا اخيستې ده ميــــوه له ګــنــډيـــريـــو

* * *

دغرور غرمو سر ټيټـــي ورتــه مه شې
دوطن دډګرونو ، نــنـــګيــالـيــو
پيلامه دبل سفر ده ستړي مــه شـــې
داغــــزنــــو اوږدو لارو لارويـــو .

المان

اپريل ۱۹۹۷

د باد په کنډوالوکې                                   کاوون توفاني

# ستوري

بیګاه سترګو د اسمان ژړلي ستوري
چې د تورې شپې په دار ختلي ستوري

شپه لانده سبا شوې چې شپه راغله
تروږمې لا تللې نه ده، تللي ستوري

سپین سهار یې تور ما ښام ته قرباني که
شپې په غشو د تیارو ویشتلي ستوري

د افق لمنه سره شوله په وینو
چا په توره د ستم وژلي ستوري

څه پروا ده که سیلۍ ګلو نه یوړل
ما په زلفو د جانان ټومبلي ستوري

چا خالونه بایلولي چا سرونه
موږ د مینې په سره لار بایللي ستوري

د رڼا له ګریوانه وتلي ستوري
نن کوټې د اسمان تشه توره ښکاري

پکې نه ځلیږي سپین سپېڅلي ستوري.

المان ۲۸/۹/۱۹۹۶

# یو ارمان

کلونه و شول چې په زړه کې یو ارمان لرمه

چې ستا ښایست او زما لویه مینه

په یوه شعر کې سره و نغاړمه.

* * *

ورځ رانه ټوله د ګلوییو په لټون تیره شي

خو چې ما ښام شي او د شپې کجیر راوالوزي د ښار په لوري

او په رنګینو کو څو و غوړوي تور وزرونه

د ښار واټو نه له ستو ما نه لاړویو تش شي

او بندیز و لګېږي

نري ، نري کاږه واږه وسنني

د شنه اسمان په لوري و غځېږي،

زموږه خړه او ختېینه بیړۍ

د بې پایانه سمندر په مرجاني کڅو نو و ننېلوي.

زه بیا را پا څیږم ډیوه بله کړم

او د ګلو ییو ځولۍ پرانیزمه،

قلم راواخلم، کاغذونه تور کړم

او تر سهاره پورې،

ستا د ښایست او خپلې مینې قصیده ولیکم

* * *

چې د سهر د ګزمې غږ واورم

زه مې لیکلي کاغذونه بیرته بیا له سره ولو لمه،

نه پکې ستا سمسور ښایستووینم،

او نه زما هغه ښیرازه مینه

قصیده خیرط کړمه

او ټولو تورو کاغذونو ته مې اور وا چوم

او په تو دوخه یې تاوده کړم خپل ساړه لاسونه

* * *

بیا چې د شپې کجیر له خوبه ویښ سي،

وزرونه و ټکوي

او بیرته والوزي د خپلې زړې ځالې په لور،

د شنه سهر شهباز تکل د الو تلو کړي

او له ختیځو غرونو والوزي د شنه اسمان د دښتې په لور،

او طلا یې وزرونه،

زمونږ د ښار له پا سه و غوړوي

کو څې راویښې شي، تازه کړي پروني یادونه

او خبل مخونه د رڼا په پیو بیا وینځي،

بیا په واټونو د رنګونو باران ووریږي

او د پېړیو تکراري لوبه له سره پیل شي.

زه بیا ځولۍ غاړې ته وا چومه،

بیا په ګلو ییو پسې ملا وتړم

او ټوله ورځ وایم له ځانه سره

ګوندې که نن شپه مې ارمان پوره شي،

ستا د ښایست او خپلې مینې انځور و کاږمه.

خو لا تر اوسه پدې نه پو هیږم

چې ستا ښایست، او زما لویه مینه،

د یو شعر،

جغرافیه کې ،

ځاییدای

کله،

شي

المان

۲۰۰۰ اکتو بر